60
القولُ السّدید
فِی
اَحکامِ التّجوید
تالیف
الفقیہ احمد الحجازی رحمہ اللہ
پښتو ژباړه
قاری فضل الحق حقّانی
محرر و مترجم کتب تجوید و قراءات بانی و مدرس
شعبۂ تجوید و قراءات فی بلوچستان پاکستان
النّاشر
مکتبۃ القراۃِ والتّجوید
کانسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا الآية

دعلم تجوید په کتابونو کې مشهور کتاب

# القَوْلُ السَّدِيد

في

# أَحْكَامِ التَّجْوِيد

تاليف
الشيخ الفقيه أحمد الحجازي

پښتو ترجمه وتشریح

قاري فضل الحق حقاني غفرله الباري
خادم التجوید والقراءات جامعه عربیه مرکزیه
تجوید القرآن سرکي روډ کوئټه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# اهداء

دُ مغوقراوو اوحفاظو په نامه چې په جنګ یمامه اونورو غزواتو کې دحق دسرلوړی اودقانون الٰهی د نفاذ په خاطر خپل سرونه دباطل و مخته سپر کړه.

محترمو لوستونکو! لکه څرنګه چې تاسوته بهتره معلومه ده چې په اکثره پښتنی علاقو کی خصوصًا دافغانستان په اسلامي هیوادکی دعلم قرائت دزده کړې دپاره مخصوصی مدرسي یاجامعی نه وی: خواکیدای سی چې په هغه وخت کی دداسی مدرسو جوړولو زمینه نه وه برابره. او یاد باقاعده اومستقلًا دداسی جامعا تو جوړولو ضرورت نه وو.

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ نن دداسي مدرسو زمینه هم برابره ده ورسره دمسلمانانو رغبت هم دقرآن مجید دقرائت وخواته ډېر سوی (تکرچی لازم ده) اوهم دهیواد په هرهر ګوټ کی قراء موجود دي.

لکن څرنګه چې دقرائت کتابونه یا عربي یا اردو او یا هم په داسی پښتو وه چې زمونږ دهیواد هرخاص وعام لوی او کشني ترا و ښځې فائده نه سوای ورڅخه اخستلای. ځکه نومًا فضل الحق حقانی حسب توفیق په سلیسه پښتو کی دا خوکتابونه ولیکل ترڅو دعامومسلمانانو دپاره دفائدې ذریعه وګرځي.

الله دې دا کتابونه دقرآن مجید دصحیح تلاوت کولو سبب اوماته دې دآخرت ذخیره وګرځوي آمین وآخردعوانا أن الحمد لله رب العٰلمين.

احقرفضل الحق حقانی

مدرس شعبه تجوید وقراءات جامعه عربیه مرکزیه تجوید القرآن سرکی روډ کوئټه بلوچستان وناظم مکتبة القراءت کوئټه

# د مکتبة القراءت (رجسټرډ) خبرداری

الحمدلله هر کله چې مکتبة القراءت رجسټرډ، په خپلو نشریاتو پیل کړی دی. او د قرآن مجید د علوموړ اشاعت او ترویج په باب کامونه اوچت کړي دي. دا زموږ مرام او هدف دی چې د قرآن کریم خدمت په خپل محنت او کوشش سره وکړو. او هر څه نشریات او تراجم په جدید حواشیو او نوی کتابت او نوی ډیزائن سره سرته ورسوو.

نو لکه څرنګه چې مکتبة القراءت (رجسټرډ) پر خپلو کتابتو نو حواشیو او تراجمو باندی باور لري. هیله ده چې هر وګړی پر خپلو نشریاتو باندی اعتماد وکړي. تر څو د اسلام، مذهب، قرآن، او هیواد د پاره په ځانګړې ډول خدمتونه وکړل سی.

که بیا هم څوك د مکتبة القراءت (رجسټرډ) و کتابتونو، حواشیو، او تراجموته په کاره نظر وګوري د عواقبو مسئوله به خپله وي. ځکه چې د نشر ټوله حقوق زموږ سره رسمًا محفوظ دي: والسلام

فضل الحق حقانی المقری

ناظم مکتبة القراءت کوئټه بلوچستان

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

الحمد لله رب العلمین الذی أنزل الکتاب المبین فیه هدًی للمتقین وانه لهدًی ورحمةٌ للمؤمنین فیاسعادة من حافظ علیٰ تلاوته وترتیله وتدبر فی معانیه وکان من العاملین إنّهٗ لَقُرۡاٰنٌ كَرِيۡمٌ فِىۡ كِتٰبٍ مَّكۡنُوۡنٍ، لَّا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الۡمُطَهَّرُوۡنَ تَنۡزِيۡلٌ مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ط والصلوٰة والسلام علی اشرف المخلوقین سیدنا محمد خاتم الانبیاء والمرسلین وعلیٰ اٰله وصحبه اجمعین ط

ولعد!

نو وائی بنده محتاجه وخدای جل جلاله ته داسی بنده چه اقرار کونکی دئ په خپل عجز او کوتاهی. خپل بادار ته چه نوم دده بنده احمد حجازی دی چه په مکه مکرمه کی فقیه وو.

وائی په تحقیق سره ما ډیر کتابونه ولیدل په فن تجوید کښی دقرآن کریم هغه چه په دې هر کتاب کښی کفایت وو او هر کتاب مطلوب لره جمع کونکی وو او مقصد لره وصل کونکی وو. او پر ما باندی څاپیره سوه طالبان په داسی حال کی چه راته ویل ئې هغه لار د پخوانی علماؤ وخلوه او راجمعه کړه یو څو د قرآن مجید د تجوید څخه اوسره دده چه دا فن تجوید داسی یو علم دی چه دده فن د عارفینو علماوو

علاوه جوالمردی نه‌سی کولای۔ لکن ما قبلونه وکړه د طلب
او غوښتنې څخه ددوئ۔ سره د علم زما پرخپل کوتاهی
او ما مدد وغوښتی د خدای جل جلاله څخه چې زما باداراو
مدد کاردئ۔ او ما اکتفاء وکړه د دې فن څخه د خپل کوشش
په مقدار سره چه زما فکر احاطه پرکړي وه۔
او ما خپل کتاب پر یوه مقدمه ۔ څلیر و یشت فصله او یوه
خاتمه باندې مشتمل کړي.
او نوم مې کښیښوی پرخپل کتاب» اَلْقَوْلُ السَّدِیْد په
احکاموکې د تجوید.
الله تعالی دې دا کتاب د خپل رضا دپاره وګرځوی ځکه چې هغه الله
کریم رحیم او مهربانه ذات دی.

## مُقَدَّمَه

**لوه سه:** چې تجوید په لغت کې مطلقًا ښایست ته وائي.
او په اصطلاح کې تجوید یو علم دی چې په هغه کې
د مخارجو او صفاتو د حروفو بحث کول کیږي
**موضوع:** دَ علم تجوید د قرآن کریم آیتونه دی او یا حروف
هجا۔
**غرض:** او مراد د تجوید څخه۔ و حروفو ته د دوی حق ورکول
چه صفات لازمه دي. او مستحق ورکول چې صفات عارضه مزینه
دي. چه هغه حق او مستحق عبارت د مخارجو او صفاتو څخه دي.
او مراد د تجوید دا هم دی چه هغه نوی حالتونه چې د قرآن کریم

وکلماتو لره پیدا کیږی د ترکیب په سبب، چې هغه عبارت له احکامو څخه دی لکه تفخیم او ترقیق او مدونه او غنی او په مثل دد ې.

او مقصد خاص دَ تجوید ساتنه د ژبې ده د خطا څخه په کلام الله کښی د تلاوت کولو په وخت کی لکه زیادت او نقصان په بعض حروفو کی.

**فـائـده** او ثمره د تجوید څخه (سَعَادَةُ الدَّارَیْن) بَری پیدا کول دي پر نیکبختی د دنیا او آخرت۔

**حُکُم** د علم تجوید فرض کفائی او عمل په تجوید فرض عین دی پَر هر مُسلمان نر او ښځه باندی د بالغانو څخه

## فصل دی په وجهو دَ اِستفتاحُ

(یعنی دَ تلاوت شروع کولو)

**پوهه:** چې وَجهی د شروع د تلاوت او سورت څلور دي (۱) وقف جمیع (۲) وصل اول په دوهم پوری (۳) وصل دوهم په دریم پوری (۴) وصل کل د ټولو یو ځای وَالی۔

**وقف جمیع** دادی چې ترساه وکاږ ی پر هر یوه د اَعُوذُ بِاللّٰه بِسمِ الله او سورت۔

**وصل اول**۔ دادی چې وصل د اَعُوذُ بِاللّٰه په بِسْمِ الله سره وکړی او پر بِسْمِ الله باندی وقف وکړی۔

**وصل دوهم** دادی چې پر اَعُوذ بِاللّٰه باندی وقف وکړی او بِسْمِ الله په سورت سره متصل کړي یعنی پر بسم الله باندی وقف ونکړی

وصل جمیع۔ دا دی چې وصل د دری سره وو وکړي یعنی وصل داَعُوذ بِاللّٰهِ او بِسْمِ اللّٰهِ او سورت سره وکړي۔

## فصل په بیان د هغو وجهو چه د دوو سورتو په مابین کښې وی

پوه سه: څه هغه وجهی چې د دوو سورتو په مابین کښې وی هغه دری (۳) دي۔

(۱) قطع کل، وقف پر ټولو۔
(۲) وصل ثانی۔ پر د ریم پوری۔
(۳) وصل کل۔ د ټولو وصل۔

(۱) **وقف** پر ټولو دا دی چه پر و دریږی پر بِسْمِ اللّٰه او پر آخر د سورت باندی۔

(۲) **وصل د وهم** دا دی چه پر اول یعنی مخکی سورت باندی وقف وکړی۔ او وصل د بِسْمِ اللّٰه په دوهم سورت پوری وکړے۔

(۳) **وصل د ټولو** دا دی چه د اول سورت آخر د بِسْمِ اللّٰه سره او بِسْمِ اللّٰه د دوهم سورت سره وصل کړي۔

او څلورم صورت چه وصل د ختم سوی سورت د بِسْمِ اللّٰه سره دی دا وجه منع ده په مابین د دوو سورتو کښې۔ ولی چې دا وجه تقاضا د دی کوی چی بِسْمِ اللّٰه جزء د آخر د سورت ده۔ او سره د دی چی محل د بِسْمِ اللّٰه ابتداء د سورت ده۔ او دا غر نکړو او ریدونکی

تہ یہ خیال کښی ورا چوی چی بسم اللہ پہ آخر د سورت کښی دہ او دا هر احتمال منع دی پہ اجماع سرہ۔ وَاللّٰہُ اَعْلَمُ

## فصل دئ پہ حکم د اعوذ باللہ او بسم اللہ کښی

**پوہ سہ:** چہ خدای تعالیٰ جل جلالہ پہ خپل کتاب عزیز کښی وئیلی دی۔ فَاِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰہِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ

**ترجمہ:** پس هر کلہ چی تہ ارادہ وکړی د قرائت د قرآن کریم نو پناہ وغواړہ د خدای جل جلالہ پہ نامہ سرہ د شیطٰن څخہ چہ ترہ تلی دی۔

حکم د اعوذ باللہ۔ لعض علماء وائی چی اعوذ باللہ پہ وخت د شروع د تلاوت واجب دہ۔ او د بعض علماؤ پہ نزد اعوذ باللہ د تلاوت کولو پہ وخت سنت دہ۔ خو عمل کول پہ هر قول باندی صحیح دی او بسم اللہ پہ ابتداء د سوَت کښی ویل واجب دہ داهغہ مشهورہ قول دی۔ او چا وئیلی دی چہ سنت مؤکدہ دہ ...

او کہ چیری یو سورت ختم سی بل شروع سی بیا هم بسم اللہ ویل پکار دی لکن د لنہ مستحب دہ۔ سوا د سورۃ براءت څخہ۔ اما پہ سورت براءت کښی اختلاف دی۔ ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی چہ بسم اللہ پہ ابتداء د سورت براءت کښی حرامہ دہ او پہ مابین کښی د سورت براءت مکروہ دہ۔ او علامہ رملی رحمۃ اللہ علیہ وائی چی بسم اللہ پہ ابتداء د سورت براءت کی مکروہ دہ او پہ منځ کی د سورت براءت مستحب دہ۔ او دا قول اعتمادی دی۔

**حکمت** د یاته کیدو د بِسۡمِ اللّٰه په اول دسورت توبه کښې دا دی چه بِسۡمِ اللّٰه د پاره د امان ده۔ اوسورت براءت کښې امان نشته ځکه چه نزول دده په توره اوقتل دکفارو او بیزارئ دخدائ جَلَّ جَلَالُه اورسول اللّٰه صلی اللّٰهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ دکفارو څخه سوی دی۔

## تنبیه

په مابین دسورت انفال اوسورت توبه کښې درې وجهی روادی

(۱) وقف (۲) وصل (۳) سکته۔

اودادرې وجهی پرترتیب د فضیلت دي۔ نوافضل وقف دی بیاورنزدي وصل دی دوصل وروسته سکته ده۔ اوکه چیرې قاری ساه وکښلی پراخرِدسورت انفال۔ نوشروع دده په سورت توبه بوازې په اَعُوذُ بِا اللّٰه وی فقط۔ ولې چې بِسۡمِ اللّٰه په اول د توبه کښې مکروه ده لکه مخکې چې ذکرسَوه۔

اوکه قاری دااراده وکړه چې وصل کړي اخردسوت انفال په اول پورې دسورت توبه نوبه دده وصل دا سې وی لکه یوسورت۔ اوکه ئې اراده د سکتې وکړه نوباریکه سکته به په مَابین ددې دووسورتو کښې وکړي بیله ساه کښلو په قدردووحرکتو۔ سره دوصل کولو ددی سورتو لکه یوسورت۔ وَاللّٰهُ اَعۡلَمُ۔

## فصل دی په بیان کی دمخارجودحروفوکښې

**پوهسه:** چې مخرجونه دحروفود پاره۔ اسی دې لکه ترازوُونه کولودپاره

معنیٰ داچې څرګنده چې د احروف دخپلو مخارجو څخه، اووزی نو نه شریکه کیږي اواز ددې حروفو دمخرج ستوی دا حروفو. نودا مخارج تمیز راوستونکی دي حروفو لره. او پیژندنه ده اندازی لره ددوی.

## د مخرج پیژندنه

کرغوک وغواړي چې د حروفو مخرجونه وپیژني او ځانته یې معلوم کړي نو دا حرف دې ساکن او یا مشدد کړي بیا دې همزه وصلیه پر داخله کړي. بیا دې غوږ ورته کښیږدي په وخت د تلفظ کښې نو پر کوم ځای چې آواز قطع سي هغه ځای لئ مخرج دئ.

## دَ مخرجُونو تِعدَادُ

د مخارجو عدد پر مشهور قول باندې اولس مخرجه دې.
او هغه اجمالي ځایونه چې دا حروف څخه ندی حاصلیږی پنځه دي

(۱) جوف دخولې
(۲) حلق
(۳) لسان
(۴) شفتین (شونډی)
(۵) خلیشوم.

**جوف** هغه خالي ځای دی چې د ننه په خوله کښې دی او په دې کښې درې حروف مده اداکیږی (۱) الف چې کله ساکن وی او ترده د مخ حرف باندې زَوَرُ وی (۲) واو چې کله ساکن وی او تر

ده د مخرج حرف باندې پیلیښ وی (۳) یاء چې کله ساکنه اوتردې د مخه حرف باندې زیروی۔

(۲) **حلق** - په حلق کی درې مخرجونه دی تفصیلي چې مشتمل پر شپږ و حروفو دی۔

**اول مخرج** اقصیٰ حلق دحلق هغه حصه ده کوم چې د سینې وخواته نزدې ده ددی څخه دوه حروف ادا کیږی۔ همزه او هاء۔

**دوهم مخرج**۔ وسط حلق دی ددی څخه دوه حرفه ادا کیږی عین او حاء۔ بیله تکو۔

**دریم مخرج** ادنیٰ حلق دحلق هغه حصه چې دخولې وخواته ده ددې څخه دوه حرفه ادا کیږی۔ غین او خاء تکی والا۔

(۲) مخرج اجمالي ژبه ده چې په دې کی لس[10] مخرجونه تفصیلي دی چې مشتمله پر (۱۸) اته لس حروفه دی۔

**اول مخرج** دژبې پای چه حلق ته نزدې دی سره د برابر لوړتالو ددې څخه غټ قاف ادا کیږی تکی والا۔ ق۔

**دوهم مخرج** دژبې پای دقاف ترمخرج لږ را لاندې دخولې وخواته سره دبرابر لوړتالو ددې څخه کشنی کاف ادا کیږی۔

**دریم مخرج** دژبې منځ سره دبرابر والی دلوړتالو ددې څخه درې حرفه ادا کیږی۔ ج۔ ش۔ ي۔ هغه یاچې مده نه وی۔

**څلورم مخرج** دژبې اړخ په داسې حال کی چه اوږدونکی وی دغه اړخ لږ وهغه ځای ته چې نزدې دی د ژامې له غاښو څخه وچیه یا راسته طرفته اوددی څخه ضاد ادا کیږی۔

**پنځم مخرج** دژبې اړخ سره دبرابر لوړتالو چې هغه عبارت دی د

د غوښو څخه د لورو غاښونو (یعنی وَرَئ) د دې څخه لام اداکیږی.

**شپږم مخرج** دژبې طرف دی لږ لاندې د مخرج څخه د لام دد ېے څخه نون مظهره غیر مشدد اداکیږی.

**اووم مخرج** . دژبې سر سره دژبې د شاه کلهچې دثنایا رباعی ناب او ضاحك سره ولګیږی د دې څخه را اداکیږی.

**اتم مخرج** دژبې طرف اودلوړو غاښو بیخونه چې کله لوړ تالو وخوا ته پورته سی د دې څخه دری حروفه اداکیږی ط. دال. تاء.

**نهم مخرج** دژبې سر اود منځ څخه دثنایا علیا او ثنایا سُفلی اود دې څخه دري حروفه اداکیږي. ص. ز. س.

**لسم مخرج** دژبې سر او دسرو څخه دثنایا عُلیا اود دې څخه دری حرفه اداکیږی. ظ. ذ. ث.

**څلورم مخرج اِجمالی** شونډان دي اوپه دې کې دوه مخرجه تفصیلی دی.

**اول مخرج** دلاندې شونډې نس سره دلوړو غاښو دسرو او د دې څخه فاء اداکیږی.

**دوهم مخرج** دواړه شونډان دي د دوی د منځ څخه دری حروفه اداکیږی باء. میم. واو. کله چې مده نه وي. سره د را تولولو دشونډو په واو اود چسپیده والی په باء اومیم کې.

**پنځم مخرج اجمالی** خیشوم دی اوداپزی پای دی د دی څخه حروف غنه اداکیږی چه نون ساکن اوتنوین دی په حالت کی د

ادغام ددوی، په غنه سره یا په حالت د اخفاء ددوی او همدارنګه نون مشدد او میم مشدد. او هغه میم ساکن چې وروسته یه باء راغلی وي. ولې چې داسی نون او میم دخپل مخرج اصلي مخرخ وخیشوم ته اوړي. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ

## فصل دئ په بیان دالقابو د حروفو کې

**پوه سه:** چې القاب د حروفو لس دي:

(۱) جوفیه (۲) هوائیه (۳) حلقیه (۴) لهویه
(۵) شجریه (۶) نطعیه (۷) لثویه (۸) اسلیه
(۹) ذلقیه (۱۰) شفویه.

**جوفیه!** دری حروف مده ته وائي ولې چې مخرج ددوی دخولې تش دی.

**هوائیه:** هم داغه دری حروف مده وونه وائي ولې چې هوا کې ادا کیږی. او پر دوی مدهم کیږی ځکه ورته حروف مده ویل کیږی او په اعتبار دراوتلو ددوی دجوف مخرج جوفیه ویل کیږی او په اعتبار ددې چې آواز پر هواء تمامیږی هوائیه ورته ویل کیږي.

**حلقیه!** شپږ حروف حلقی دي ولې چې دحلق مخرج ادا کیږی او د بې حروف اظهار هم ویل کیږي.

**لهویه:** قاف او کاف دی له جهته د راوتلو ددوی داخر مخرج د ژبې په نزد دحلقي ژبې - او حلقي ژبه هغه راځړیدونکی غوښه ده په حلق باندې.

**شجریه**: د جیم شین او یاء لقب دی هغه یا ءچی مده نه وي ولې چی دوی د خولې د شجر څخه ادا کیږی. او شجر د خولې مابین د ژبې سره د مقابل لوړ تالو ته ویل کیږی.
او ویل سوي دي چي ضاد د حروف شجریه لسانی څخه دی له جهته دراوتلو ده د ژبې د اړخ څخه کله چي دا اړخ اوږ دسی وهغه نږدی اضراسو غاښونو ته له چپه طرف یا راسته طرفه او یا د دواړو طرفو څخه په یوه وار.
**نطعیّه** د طاء، دال، تا. لقب دی یعنی د غاړی څخه د لوړ تالو لوړ بام دی ادا کیږی.
**لثویه**: د ظاء، ذال، ثاء. صفت دی ځکه چی دوی د سر څخه د ژبې او سرو څخه د ثنایا عُلیا ادا کیږی.
**اِسلیّه** دا لقب د صاد، زا، سین دی ولې چی دا حروف د سر څخه د ژبې او سرو څخه د ثنایا علیا او ثنایا سُفلیٰ ادا کیږي.
**ذلقیّه**، دا لقب د لام، نون، را دی ولې چی دوی د ذلق یعنی طرف څخه د ژبې ادا کیږی.
**شفویّه** لقب د باء، میم، واو دی ځکه چی دوی د شونډو څخه ادا کیږی او د شفه معنیٰ هم شونډه ده.

## فصل دی په بیان د صفاتو د حروفو کښی

**یوه** سه چی صفات جمع د صفة ده د صفت لغوی معنی ده.. مَاقَامَ بِالشَّیْءِ مِنَ الْاَعْرَاضِ کَالسَّوَادِ وَالْبَیَاضِ. ترجمه هغه چی

قائم په شي پوري وي لراعراضو څخه لکه توروالی یا سپین والی اونور. او په اصطلاح کی صفت یوکیفیت دی چی عارضیږی حرف لره پروخت د حاصلولودحرف په مخرج کی چه هغه کیفیت عبارت دی د جهر، همس، شدت، رخوت، او په مثل د دوی۔

او فائده د صفا تو بنائسټروالی د لفظ دی او امتیاز اوفرق کول دي په ما بین د آوازو کښې هغه اوازونه چی خاوندان د حروفو وی۔ اوهغه حروف په مخرج کښې یو وي۔ اوحلاکول د بعضې حروفو د نورو بعضو څخه۔ اوکه دا صفات نه وی نود متحد المخرج حروفو آوازونه به سره یو شوی وای نو بیا به لکه د چارپایانو اوازونه هیڅ دلالت به ئې پرمعنیٰ نه کولای۔

او صفات دحروفو پرقول مشهور باندی اولس دي۔ دا رنګه چی صفت دتوسط چی په مابین کی د شدت اورخوت دی ملګری کړي د شدت اویا رخوت سره۔ اوهغه زمونږ مقصود صفات دا دي۔ (۱) جهر (۲) همس (۳) شدت (۴) رخوت (۵) استعلاء (۶) استفال (۷) إطباق (۸) انفتاح (۹) اذلاق (۱۰) اصمات (۱۱) صفیر (۱۲) قلقله (۱۳) انحراف (۱۴) تکریر (۱۵) تفشی (۱۶) استطالت (۱۷) لین۔

دا مذکوره صفات پر دوه قسمه تقسیم کیږی

اول قسم هغه صفتونه دي چی دوئ لره ضد سته. او دا سې صفتونه پنځه دي چی ضد ئې هم پنځه دي۔

دوهم قسم هغه صفتونه دی چی هغو لره ضد نشته دا سې صفتونه

اوه دي!
اوهغه صفتونه چې هغوله ضد سته اول همس دی چې ئی جهر دی
شدت دی ضد ئی رخوت دی۔ استعلاء ده ضد ئې
استفال دی، اطباق دی ضد ئی انفتاح دی، اذلاق
دی ضد ئی اصمات دی۔
اوهغه قسم چې ضد نه لری هغه دا باقی صفتونه دی لکه صفیر
قلقله، لین، انحراف، تکریر، تفشی، استطالت
دی۔ د پے صفاتِ مذکوره وولره دهر یوه دپاره خاصه معنیٰ
او په حساب حروف سته۔ نو لازمه ده چې ذکر کړه معناوی
ددی صفاتو او حروف ددې صفاتو چې فائده تامه او پوره سی۔
دَجَهر معنیٰ په لغت کی اعلان او اظهار دی۔ او په اصطلاح
کښی بندوالی دجریان دساه دی په وخت کی د تلفظ کولو په
دی حروفو سره۔ له جهته دقوت ددی حروفو۔ اوقوت دحرف
ماخوذ دی د قوی تکیه او اعتماد کولو پر مخرج ددی حروفو۔
حروف دجهر نولس[19] دی چه عبارت د۔ همزه، الف، باء، جیم،
دال، ذال، را، زا، ضاد، طاء، ظاء، عین، غین، قاف، لام،
میم، نون، واو، یاء، داحروف بعضی قاریانو په دی کلماتو
کښی راجمع کړیدي۔ ظل قور بض اذ غزا جند مطیع۔
دا ټول حروف مجهوره دی او نور حروف چې پاته سوه هغه مهموس دي
د همس معنیٰ په لغت کی هغه پوشیده او پټ اواز دی او په
اصطلاح کښی دا همس جاری کیدل دساه دي په وخت د تلفظ
کولو په حرف سره د جهته د ضعف ددی حرف۔ او ضعف ئې

پیدا سوی دی د ضعیفه تکیه کولو څخه پر مخرج دده، او حروف لئ لسن دي چې جمع کړیدی دې قول ستا، فحثه شخص سکت.

**اوشدت** په لغت کی قوت ته وائ او په اصطلاح کښی شدت بند والی د جریان د آواز دی په وخت کښی د تلفظ کولو په دې حرف سره د جهته د تکیه کولو، کمال قوت سره په مخرج کی دده او حروف په اته دي چې جمعه دی په دی قول کی ستا اَجِدُكَ قَطَبْتَ

**رِخوت** په لغت کی نرمی او په اصطلاح کی رخوت جریان د صوت دی د حرف سره د جهته د ضعیف تکیه کولو پر مخرج دد دي حرف او حروف لئ شپارس دی چې جمع کړی دي د ے قول ستا خُذْ غَثَّ حَظٍ فَضَّ شُوْصٍ زَىَّ سَاهٍ۔

**توسُّط** چې دا صفت په مابین کی د شدت او رخوت دی په دے کی نه پوره اواز جاری وی او نه پوره بند وی لکن جریان ته ورنږدی وی او حروف په پنځه دي چې په دی قول کی جمع دي لِنْ عُمَرَ

**اِستعلاء** په لغت کی علو او پورته کیدو ته وائ۔ او په اصطلاح کښی پورته کول د ژبې دی ولوړ تالو ته په وخت کښی د ویلو د حرف۔ او داسی حروف اوه دی چې جمع دي په دې قول کښی ستا خُصَّ ضَغْطٍ قِظْ۔

دا اووه حروف مستعلیه دی او په هر حال کی د ډ ډ ک ویل کیږی ددی علاوه نور حروف مستفله دي۔

**اِستفال** په لغت کی کښته والی ته وائ او په اصطلاح کښی کښته والی د ژبې دی د لوړ تالو څخه په وخت دادا کولو د حرف۔ او حروف دده دوه ویشت دی چې جمع کړی دی بعض قراوو په

دی کلموکی ثَبَتَ عِزَّ مَنْ یُجَوِّدُ حَرْفَہٗ اِذْسَلَّ شَکَّا۔

اِطباق په لغت کښی چسپیدہ والی یعنی داسی یوځای والی چی سره وَمَښلی۔ او په اصطلاح کښی مَښلَوَل د ژبی دی دتالود برابری حصی سَره پَه وخت کښی د ویَلو دحرف او داسی حروف څلور دی۔ ص۔ ض۔ ط۔ ظ۔

داڅلورحروف مطبقه دی یَا ته حروف هجاء منفتحَه دی۔

اِنفتاح په لغت کښی جَلا والی او خلاص والی ته ویل کیږی او په اصطلاح کښی جَلا والی د ما بین د ژبی او تالودی په وخت دادا کولو د دې حروفو: او حروف په پنځه ویشت ۲۵ دی چی دا حروف راجمع کړی دی قراوو پَه دی کلماتو کی۔۔

مَنْ اَخَذَ وَجَدَ سَعَةً فَزَکَّا حَقٌّ لَہٗ شُرْبُ غَیْثٍ۔

اذلاق په لغت کی تیره کول او ایله کول دی د ژبی۔ او په اصطلاح کښی تکیه کول پر طرف د ژبی یا شونډو۔ او حروف ئی شپږ دی چی جمع سویدی په دی قول کی ستا فَرَّمِنْ لُبٍّ۔

په دی کی لام، نون۔ راء۔ دَ طرف مخرز د ژبی او باء۔ میم، فاء، د طرف مخرز د شونډو۔ دا شپږ مذلقه دي نور پاته حروف ټول مصمته دی۔

اِصمات په لغت کښی منع کول ته وَائی او په اصطلاح کښی اصمات تکیه کول دی پر منع د انفراد، یعنی هر کله چی پر څلور حروفه اصلی یا پنځه یو کلمه وی چاره نسته د دی مخرچی وی به په د ی کلمه کښی د حروف مصمته سره یو حرف د حروف مذلقه و مخرزا و حروف ئی د رویشت چی بعض قراوو په دی کلماتو کی راجمع کړیدی۔

جز غشر ساخطٍ صد ثقه اذو عَظه یَحمنك۔

- تردی ځایه صفاتِ لازمه متضاده یعنی
یو د بل سره ضِدُّ وه پاته صفات غیر متضاده ۔

**صَفیر** په لغت کی واواز ته ویل کیږی دچارپایانو ۔ او په اصطلاح کښی دا صفیر یو اوازدی زائِد چی په قوت سره راوزی دمابین څخه دسَردژبی او ثنایا ۔ داسی حروف دری دي ۔ص ۔ ز۔ س۔

**قلقله** په لغت کی حرکت او ښورَوَلو ته وائي ۔ او په اصطلاح کی دا قلقله یو آوازدی زائد ۔ چی په قوت اوزور سره پیدا کیږی په مخرج کی وروسته ترحرف ساکن ۔ حروف ئې پنځه دی چی جمع دی په قول د ساکی قُطُبُ جَدٍّ ۔

او ددی حروفو څخه چی کوم ساکن وی په منځ کی د کلمی هغه ته قلقله صُغریٰ ویل کیږی لکه یَقْطَعُونَ ، یَطْمَعُونَ ، وَیَجْعَلُونَ وَ لِیَبْکُوا ، وَلَا تَدْعُ او نور په مثال ددی ۔

او کله چی ددی حروفو څخه په اخِر کښی د کلمی راسی هغه ته قلقله کبریٰ ویل کیږی ۔ او قلقله ئې ترصغری قوی دَه مثال ئې لکه مِنْ خَلَاقٍ ، سَوَاءَ الصِّرَاطْ ، اَمْشَاج ، اَنَابٍ ، یُرَادُ ۔ او نور په مثل ددې حروفو په اخِر کښی د کلمی ۔

---

**پُوهِ سَله** چی قلقله لره پنځه مرتبې دی ۱ ۔ قلقله اعلیٰ ۔ قلقله اعلیٰ هغه ده چی کله حرف دقلقلی مشدد وی او وقف هم ور باندی وکړه سی لکه اَلْحَقّ ۔ اَلْحَجّ په حال دوقف کی ۲ ۔ قلقله عَالی ۔ چی حرف قلقله مشدد وی لکن نه دوقف په صورت کی لکه وَتَبَّ په حاله وصل کی ۔ ۳ ۔ قلقله وُسطیٰ چی حروف قلقله متحرکه وو باندی وقف وکړل سي لکه خَلَق ۔ ۴ ۔ قلقله ترقلقله وسطی را الاندی چی حروف قلقله ساکن د کلمی په منځ کی وی لکه لَقَدْ خَلَقْنَا ۔ ۵ ۔ قلقله ادنیٰ کله چی دا حروف متحرك وی لکه قُتِلَ ۔ احقر فضل الرحمٰن حقانی غفرله رب البادی ۱۲

**لین** په لغت کې ضد د سختۍ او په إصطلاح کښې را ایستل د حرف دي د خولې څخه بیله تکلیفه او په نرمۍ سره. حروف ئې دوه دي واو. او یاء چه ساکن وي او مخکې حرف باندې زور وي لکه مِنْ خَوْفٍ ، وَالصَّیْفِ.

**إنحراف** په لغت کې مَیل ترواڼۍ او په اصطلاح کښې مَیل دی وطرفته د ژبې دسر وخواته په وخت کې د اداکولو د دې حروفو. او حروف ئې دوه دي. لام. راء.

**تکریر** په لغت کې راګرځول د شي دی یو وار یا زیات تر یو وار او په اصطلاح کې رېږدول دي د ژبې په وخت کې د اداکولو د حرف. او د تکریر یو حرف دی رَاء.

**تفشي** په لغت کې پاشلو ته وائي او په إصطلاح کښې پاشل د باد دي په خوله کښې په وخت د اداکولو د حرف. او حرف ئې یو شین دی په نزد د اهل اداء.

**إستطالت** په لغت کې اوږدوالي ترواڼۍ. او په إصطلاح کښې اوږدوالی د اول اړخ د ژبې تر اخر پورې او دا سې حرف یو ضاد نقطه والا دی. ض.

## تنبیهات

### اوله تنبیه!

دا او لس صفتونه پر دوه قسمه دي صفات قویه صفات ضعیفه صفات قویه یوولس دي. جهر، شدت، استعلاء، اطباق اصمات، صفیر، قلقله، انحراف، تکریر، تفشي، استطالت او صفات ضعیفه شپږ دي. همس. رخوت، استفال، انفتاح

اذلاق، لین۔

دوهمه تنبیه۔ پوه سه چې حروف هجائیه پر درې قسم وېشل کیږي ۱۔ اول قسم هغه حروف دي چې په هغو کې پنځه صفتونه وي او دا اول پنځه صفتونه یو د بل سره ضد وي۔

۲۔ دوهم قسم هغه حروف دي چې په هغو کې شپږ صفته پیدا کیږي فقط چې پنځه صفته ئې متضاده یعنې یو د بل سره ضد وي او یو صفت یې غیر متضاده وي۔

۳۔ دریم قسم: هغه حروف دي چې په هغو کې اوه صفته پیدا کیږي چې د هغو نه پنځه صفتونه متضاده او دوه غیر متضاده دي۔

هغه حروف چې پنځه صفتونه لري

تاء۔ ثاء۔ حاء۔ خاء۔ ذال۔ ظاء۔ عین۔ غین۔ فاء۔ کاف میم۔ نون۔ او هاء دي۔ او درې هم حروف مده دي یعنې الف، واو، یاء،

هغه حروف چې شپږ صفتونه لري.

باء، جیم، دال، زاء۔ سین۔ شین، صاد، ضاد، طاء، قاف، لام۔ او واو۔ یاء۔ چې مده نه وي۔

هغه حروف چې اوه صفتونه لري.

هغه راء ده فقط۔

نو که تا اراده وکړه د پیژندلو د صفتونو د هر حرف چې څو صفتونه پر کښې سته۔ نو حرف ر، او اخله او هم دا رنګه را او اخله اول د صفاتو چې جهر دی مثلاً نیا ضد د هغه را او اخله چې همس دی او د همس په مجموعه کښې وګوره که چیرې په مجموعه کې د همس وو خو بیا نه

که نه وو نو په دې حرف کې جهر دی ـ
بیا وَلارِسَه وُدریم او څلورم صفت لره چې شدت او رخوت دی او د شدت په مجموعه کې وګوره که چیرې په کښې موجود وو خو سبه که نه وو نو په ده کې رخوت دی که دَ توسط په مجموعه کې نه وو. او همدارنګه نور صفتونه ترڅو تا ته د هر حرف صفتونه په اسانه سره معلوم سي ـ

# فصل په بیان دَ مخارجو او دَ صفاتو دې

**پوښتنه:** چې هر حرف لره د حروف هجاء څخه مخرج، لقب او صفات ستَه ـ چې خاص وي په دې حرف سَره ـ مخکې لې هم څه اجمالاً ذکر وسو ـ او اوس مقصود د دې شیانو تفصیل دَئ ـ نو موږ وایو چه!

**همزه** حرف حلقي دی ولې چې دی راوزي د پای څخه د حلق چه هغه ته نژدې دې سینه دَه ـ او د دې همزه پنځه صفتونه دي.
۱ ـ جهر ۲ ـ شدت ۳ ـ اصمات ۴ ـ انفتاح ۵ ـ اِستفال ـ

**بَاء** حرف شفوي دَه ځکه چې اداکیږي د منځ څخه د دوو شونډو سره د یو ځای والي دَ شونډو ـ او د باء د پاره شپږ صفتونه دي ـ ۱ ـ جهر ۲ ـ شدت ۳ ـ استفال ۴ ـ انفتاح ۵ ـ اذلاق ٦ ـ قلقله ـ

**تَاء** د حروف نطعیه وو څخه دی ځکه چې راوزي د ژبې د طرف څخه او د بیخو څخه د ثنایا علیا ـ چې کله د ژبې سر پورته سي د لوړ تالو و

خوا ته او د دی پنځه صفتونه دي. ۱- همس ۲- شدت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات.

**ثاء** حرف لثوي لساني دی ځکه چي دا راوزي د طرف څنډه د ژبي او د سر و څنډ د ثنایا علیا. او د دی پنځه صفتونه دي.
۱- همس ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات.

**جیم** حرف شجري دی ځکه چه راوزي د منځ څنډ د ژبي چه برابر دی د لوړ تالو سره. او د ده شپږ صفتونه دی. ۱- جهر ۲- شدت ۳- انفتاح ۴- استفال ۵- اصمات ۶- قلقله

**حاء** حلقي حرف ده ځکه چي دا راوزي د مابین څنډ د حلق. د دی پنځه صفتونه دی. ۱- همس ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات

**خاء** حلقي حرف ده ځکه چي راوزي د پورته حصی څنډ د حلق هغه حصه چي خولی ته نزدی ده د دے پنځه صفتونه دي.
۱- همس ۲- رخوت ۳- استعلاء ۴- انفتاح ۵- اصمات.

**دال** حرف نطعي لساني دی ځکه چه راوزي د ژبي د سر او د ثنایا علیا د بیخو څنډ کله چي دا سر د ژبي د ثنایا علیا و طرفته پورته شي او د ده شپږ صفتونه دی. ۱- جهر ۲- شدت ۳- قلقله ۴- اصمات ۵- انفتاح ۶- استفال.

**ذال** حرف لثوي لساني دی ځکه چي راوزي د ژبي د سر او د سر و څنډ د ثنایا علیا. او د ده پنځه صفتونه دی. ۱- جهر ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات.

**را** حرف ذلقي لساني دی ولې چي راوزي د ژبي د شا څنډ او هغه برابر لوړو ورېود ثنایا علیا. او د دی اووه صفتونه دی

۱- جهر ۲- توسط ۳- انفتاح ۴- استفال ۵- اذلاق ۶- انحراف ۷- تکریر

**زا** حرف صفیر لسانی ده محکه چی راوزی د طرف څخه د ژبی او د مابین څخه د ثنایا علیا او ثنایا سفلی - او د زاء شپږ صفتونه دی ۱- جهر ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات ۶- صفیر

**سین** حرف صفیر لسانی دی ولی چی راوزی د ژبی د سر او سر و څخه د ثنایا علیا او ثنایا سفلی او دده شپږ صفتونه دی

۱- همس ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات ۶- صفیر

**شین** حرف شجری لسانی دی ځکه چی دی راوزی د مابین څخه د ژبی چه برابر دی د لوړتالو سره او دده شپږ صفتونه دی

۱- همس ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات ۶- تفشی

**صاد** حرف صفیری لسانی دی ولی چی دی ادا کیږی د سر څخه د ژبی او د سرو څخه د ثنایا علیا او سفلی - دده شپږ صفتونه دي - ۱- همس ۲- رخوت ۳- استعلاء ۴- اطباق ۵- اصمات ۶- صفیر

**ضاد** څوک وائی چه دا حرف شجری دی ولی چی راوزی د اول ارخ څخه د ژبی په اوږد والی دده ارخ و نږدی اضراسو ته وراسته یا چپه طرفته یا دد واړو څخه په یو وار - او دده هم شپږ صفتونه دي.

۱- جهر ۲- رخوت ۳- اطباق ۴- استعلاء ۵- اصمات ۶- استطالت

**طاء** حرف نطعی لسانی دی لرسببه د راوتلو دده د ژبی د سر او بیخو څخه د ثنایا علیا کله چی د ژبی سر د لوړتالو و خواته لوړ ته سی. د طاء شپږ صفتونه دی - ۱- جهر ۲- شدت ۳- استعلاء ۴- اطباق ۵- اصمات ۶- قلقله -

**ظاء** حرف لثوی لسانی دی ولې چې دی اداکیږی دژبې دسرڅخه سره دسرو دثنایا عليا - او د ظاء پنځه صفتونه دی - ۱- جهر ۲- رخوت ۳- استعلاء ۴- اطباق ۵- اصمات .

**عین** حرف حلقی دی ځکه چه راوزی دحلق د مابین څخه او دده پنځه صفتونه دی - ۱- جهر ۲- توسط ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات -

**غین** - حرف حلقی دی ولې چې دی اداکیږی دپورته حصې څخه دحلق هغه حصه چې نزدی ده خولې ته - او د غین پنځه صفتونه دی - ۱- جهر ۲- رخوت ۳- استعلاء ۴- انفتاح ۵- اصمات .

**فاء** حرف شفوی دی دجهته دراوتلو ددی د لاندی شونډې دلس او د ثنایا عُلیا دسرو څخه - او ددی پنځه صفتونه دی .
۱- همس ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اذلاق .

**قاف** حرف لهوی دی ولې چې دی اداکیږی دپای څخه دژبې چې کله د لوړتالو ټکر وخوری - او صفتونه یه شپږ دی .
۱- جهر ۲- شدت ۳- استعلاء ۴- انفتاح ۵- اصمات ۶- قلقله

**کاف** حرف لهوی لسانی دی دجهته د اداکیدو دده دپای څخه دژبې لاندی ته مخرج د قاف برابر د لوړتالو سره - او صفتونه یه پنځه دی . ۱- همس ۲- شدت ۳- انفتاح ۴- استفال ۵- اصمات

**لام** حرف ذلقی لسانی دی ځکه چې دی اداکیږی داول څخه د حافې چه برابر د پورته تالو سره دی - او دده شپږ صفتونه دی
۱- جهر ۲- توسط ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اذلاق ۶- انحراف .

**میم** حرف شفوی دی ځکه چې دا میم اداکیږی دشونډانو د مابین څخه سره دیوځای والی دشونډو. او دده پنځه صفتونه دی
۱- جهر ۲- توسط ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اذلاق.

**نون** حرف ذلقی لسانی دی ولې چې دی اداکیږی د ژبې د کنارې څخه د لام تر مخرج لاندی. او دده پنځه صفتونه دي.
۱- جهر ۲- توسط ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اذلاق.

**واو** غیرمده. حرف شفوی دی ځکه چې اداکیږی دمابین څخه دشونډانو سره دخه خلاص والي دشونډانو او دده شپږ صفتونه دی ۱- جهر ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات ۶- لـین.

**هاء** حرف حلقی ده ځکه چې اداکیږی د حلق دپای څخه یعنی دحلق هغه حصه چې دسینې وخواته ده. دده پنځه صفتونه دي
۱- همس ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات.

**یاء** غیرمده. حرف شجری دی ولې چې اداکیږی دمابین څخه د ژبې هغه چې برابرد لوړتالوسره دی او ددی شپږ صفتونه دي.
۱- جهر ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات ۶- لین.

**واو، یاء، الف**، چې مده وی نو مخرج ددوی جوف دخولې دی یعنی دخولې هغه خالی ځای. دا حروف مده دي. او ددوی پنځه صفتونه دی.
۱- جهر ۲- رخوت ۳- استفال ۴- انفتاح ۵- اصمات.

پر همدغه ځای پوره سو بحث د مخارجو
او بحث د صفاتو وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

# فصل په بیان د تفخیم او ترقیق کې

**پوه سه:** چې د تفخیم تعریف په اصطلاح کې د قراوو را ایستل د حرف دی په سختی سره چې خوله دده په آواز ډکه سی.
او ترقیق په اصطلاح کې د قراوو تلفظ کول دی په حرف سره باریك چې دده په آواز نه خوله ډکیږی.
او حروف هجاء و دوه قسمه ته تقسیمیږی.
١- قسم مفخم.
٢- قسم مرقق.
کوم چې اول قسم مفخم دي هغه اوه حروف استعلاء چې په دی قول کې جمع کړل سوی دي، خُصَّ ضَغْطٍ قِظْ، په دی اووه حروفو کې زیات مفخم حروف څلور حروف مطبقه دي.
او د تفخیم شپږ مرتبې دی
١- قوی تفخیم هغه وخت دی چې دا حروف مفتوح او وروسته په الف هم وی لکه خَاشِعِينَ صَادِقِينَ قَانِتِينَ. اونور
٢- بیا هغه مرتبه ده چې زوروالی دا حروف لکن وروسته په الف نه وی لکه خَشِيَ قَعَدَ غَفَرَ اونورداسی.
٣- هغه مرتبه ده چې دا حروف ساکن وی وروسته تر زور یا پیښ راسی لکه اَخْـرَجَ، يَقْطَعُونَ، لِيُطْفِئُوا. اونور.
٤- هغه مرتبه ده چې دا حروف ساکن وروسته تر کسره اصلی یا عارضی راسی لکه اَفْرِغْ، اَنِ اقْتُلُوْا، اَوِاخْرُجُوا، بِضْعَ، اِطْعَامُ او دا مرتبه په تفخیم کې د غین، خاء او قاف تاثیر کوی، او په پاته

ځلو حروف مطبقو کی تاثیر نه کوی۔
او په عین خاء قاف کی په حالت د ما قبل د کسری بنه نرم والی دی
دد ے حروفو او دا نرم والی په مناسبت د کسری دی که څه هم دا حروف
په اصل کی مفخم دی۔ لکن ترقیق د دوی په حال د کسری د ما قبل
راجح په قرائت او خوندور په تلفظ کی دی په نزد د اهل اداء۔

## ۲ - دوهم قسم مرقق دی۔

مرقق (باریک) د حروف هجاء څخه ۲۲ دوه ویشت حروف دی۔ یعنی ما
سوا د حروف استعلاء څخه چی اووه دی۔ (کوم چی مخکی ذکر وسو)
او دا حروف راجمع کړیدی بعض قراؤ په دی لاندی بیت کی۔
ثَبَتَ عِزٌّ مَنْ جَوَّدَ حَرْفَهٗ اِذْ سَلَّ شَكًا۔
نو دا مذکوره دوه ویشت حروف مستفله دی باریک ویل کیږی۔ ماسوا
د لام۔ او راء۔ څخه چی دوی په بعض اوقاتو کی ډک (تفخیم) سره
ویل کیږی۔ همدارنګه الف مده چی هغه تابع د ما قبل دی کمچیری
وروسته تر حرف مفخم راسی نو دی هم ډک ویل کیږی لکه
اَلْقَانِتِیْنَ اَلْخَاشِعِیْنَ اَلصَّابِرِیْنَ او په مثل دد ے۔
او کمچیری دا الف مده وروسته تر مرقق (نرم) حرف مرقق راسی
نو هلته باریك ویل کیږی لکه لَآ اُقْسِمُ یٰٓاَیُّهَا۔ هٰٓاَنْتُمْ
او نور هم پردی قیاس که۔

# فصل په بیان د حکم د لام او راء کی

پوهه سه: چی لام او راء دواړه حروف مستفله دی او اصل په دوی کی

ترقیق نرم والی دی. لکن کله کله دوی دواړه ویل کیږی او دا
دواړه والی ئې عارضی دی.
او دا تفخیم یه په مناسبت د هغو حرکاتو دی چې پر لام او راء
باندی راځي. د لفظ الله جل جلاله د لام قاعده.

# اَللّٰهُ

د لفظ الله څخه مخ کی چې کله فتحه (زور) یا ضمه (پیښ) وی نو هلته
لفظ د الله کی لام درانه ویل پکار دی. لکه اِلَى اللّٰهِ - وَتَاللّٰهِ،
وَاللّٰهِ، عَبْدُ اللّٰهِ يَعْلَمُهُ اللّٰهُ، وَاِذْ قَالُوا اللّٰهُمَّ یا په مثل د دی
او ماسوا د دی دوو حالتو څخه په حال د کسره کی باریك ویل
کیږی لکه بِسْمِ اللّٰهِ، وَلِلّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، قُلِ اللّٰهُمَّ، او نور
په مثل د دی.

## قاعدې د را یعنی درانه یا باریك ویلو کیږی

هر کله چې پر را باندی زور یا پیښ وی هلته را درانه ویل که حالت
د وصل وی که د وقف لکه عُرُبًا، اَتْرَابًا، وَانْظُرُوا، وَاصْبِرُوا
اَمْرًا، اَجْرًا، او نور په مثل د دی.
او همدارنګه را درانه ویل کیږي کله چې را ساکنه وي او مخکی تر را زور
یا پیښ وی لکه تُرْهِبُوْنَ، وَقَرْنَ، وَقُرْاٰنٍ، وَتَرْهَقُهُمْ.
او په مثل د دې نور مثالونه.
او همدارنګه را درانه ویل کیږی کله چې را ساکنه کړل سی د وقف له
سببه او مخکی تر را زور یا پیښ وی لکه جَآءَهُمُ النُّذُرُ
لَیْلَةُ الْقَدْرِ لِلْبَشَرِ وَالْقَمَرِ دُسُرٍ - او نور په مثل د دې
راء درانه ویل کیږی کله چې راء ساکنه سی په وقف کښی او د دی را او

مضموم یا مفتوح حرف په مَابین کی واو ساکنه او یا الف واقع سی
لکه اَلْاَبْرَارُ، اَلْاَخْیَارُ، غَفُوْرٌ، شَکُوْرٌ. او نور په مثل د دی.
راء. د کوم ویل کیږی کله چی راء ساکنه او مخکی یه زیر وی لکن دا زیر
عارضی وی لکه.. اَلَّذِی ارْتَضٰی، امْرَاُرْتَابُوْا، اِنِ ارْتَبْتُمْ،
راء. د کو ویل کیږی کله چی راء ساکنه او مخکی زیر اصلی وی لکن
وروسته تر راء حرف د حروف مستعلیه وو څخه وی په راء پسی متصل
او دا حرف استعلاء مکسور نه وی لکه قِرْطَاسٍ. اِرْصَادًا،
لَبِالْمِرْصَادِ. فِرْقَةٍ.
او په دی قول کی د خدای جل جلاله "کُلُّ فِرْقٍ" چی په سورة شعراء کی
راغلی دی دلته د راء ترقیق او تفخیم دواړه جائز دی. اما تفخیم
له دی سببه چی وروسته تر راء متصلاً حرف د حروف مُستعلیه وو
څخه راغلی دی. او ترقیق په دی چی هغه حرف استعلاء مکسوره دی
یا په سبب د دوو کسرو چی وروسته او مخکی تر راء راغلی دی
لکن ترقیق یه اولیٰ او سپک دی په تلفظ کی.
او همدارنګه راء په دی قول کی د خدای جل جلاله کی "اُدْخُلُوْا مِصْرَ" او
"عَیْنَ الْقِطْرِ" نو بعض علماء وائی چی دلته په دواړه کلماتو کی
په حالت د وقف کی ترقیق اولیٰ دی ولی چی د دوی اعتبار ورکوی
هغه کسره اصلی ته چی مخکی تر راء ده. او کوم حرف استعلاء چی په
منځ د راء او د کسری دی هغه ته اعتبار نه ورکوی.
او بعض عُلماء دواړه وجهی روا بولی. تفخیم په دی اعتبار چه
دوی اعتبار ورکوی هغه حرف استعلاء ته چی مابین د راء او د کسری
دی. او ترقیق په اعتبار د دی چی راء ساکنه او مخکی ئی زیر دی قطع

نظر د حرف استعلاء تخم ته.
او بعض علماء په مِصْرَ کی و تفخیم ته ترجیح ورکوی او په عَیْنَ الْقِطْرِ
کی ترقیق ته په حالت د وقف کی ولی چی په دی صورت کی دوی
خپله د راء حرکت ته اعتبار کوی نو په مِصْرَ کی پر را باندی زور دی
او په عَیْنَ الْقِطْرِ کی پر را باندی زیر دی. او دا قول غوره دی.

« راء مکسوره »

او که پر را باندی زیر وی نو دا را باریکه ویل کیږی په وَصل کی
که دا زیر اصلی وی او که عارضی وی. د اصلی زیر مثال لکه اَلرِّجَالُ،
اَلرِّزْقِ، وَ فِی الرِّقَابَ. وَقَرِیْبٌ. او که زیر عارضی وی لکه
اَنْذِرِالنَّاسَ، وَاذْکُرِسْمَ، وَذَرِالَّذِیْنَ. او نور په مثل د دی.
او همدارنگه راء باریکه ویل کیږی کله چی راء ساکنه وی او مخکی لئ کسره
په داغه کلمه کی وی او ورو سته تر راء ساکنه حرف استعلاء په داغه
کلمه کی نه وی او مخکی کسره اصلی وی. لکه فِرْعَوْنَ، مِرْیَتٍ.
او همدارنگه را باریکه ویل کیږی کله چی راء ساکنه مخکی زیر او ورو سته
حرف استعلاء په بله کلمه کی وی. لکه فَاصْبِرْ صَبْرًا، اَنْذِرْ قَوْمَکَ
وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّکَ.
او همدارنگه را باریکه ویل کیږی کله چی راء د وقف له کبله ساکنه سی او
مخکی تر را یاء ساکنه وی که تر یاء مخکی زور وی او که زیر وی لکه
خَیْر، لَاضَیْرَ، وَالطَّیْرُ. قَدِیْرٌ. بَصِیْرٌ، خَبِیْرٌ.
او هم نور په مثل د دې، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ.

---

کتبه بیده احقر فضل الحق حقانی خادم القراٰت جامعه تجوید القرآن

# فصل دی په بیان د حکم د نون ساکن او تنوین

**پوهه:** چې نون ساکن او تنوین لره پنځه حکمونه دي.

۱- اظهار حلقي ۲- اخفاء حقیقي ۳- ادغام بغنه ۴- ادغام بلاغنه ۵- اقلاب.

**۱-** اظهار په لغت کې بیان ته وائي - او په اصطلاح کې ایستل د حرف دی له خپل مخرج نه بیله غنې.

او حروف د اظهار حلقي شپږ دي - ۱- همزه ۲- هاء ۳- عین ۴- حاء ۵- غین ۶- خاء - هر کله چې دا شپږ حروف د نون ساکن او تنوین وروسته راسي دې ته اظهار حلقي ویل کیږي - خواه که دا نون ساکن او حروف حلقي په یوه کلمه کې وي او که په دوو کلمو کې وي.

مثال د دوو کلمو لکه مَنْ اٰمَنَ، مِنْ هَادٍ، مِنْ حَدِیْدٍ، مِنْ غِلٍّ، مِنْ خَیْرٍ مِنْ عِلْمٍ.

او مثال د یوې کلمې لکه یَنْأَوْنَ، یَنْهَوْنَ، یَنْعِقُ، وَتَنْحِتُوْنَ. فَسَیُنْغِضُوْنَ، وَالْمُنْخَنِقَةُ - او نور مشابه دد پسې.

او مثال د تنوین د دې شپږو حروفو سره. رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ، جُرُفٍ هَارٍ، سَمِیْعٌ عَلِیْمٌ، تِجَارَةً حَاضِرَةً، عَزِیْزٌ غَفُوْرٌ، عَلِیْمٌ خَبِیْرٌ، او نور په مثل دد دي - او تنوین بیله دوو کلمو نه راځي لکه په دې ذکر سوي مثالو کې.

## فرق په مابین د نون ساکن او تنوین

۱- دا چې نون ساکن ثابته پاته کیږي خطًا او لفظًا په وصل او وقف کې او تنوین په لفظ او وصل کې ثابتیږي نه په خط او وقف کې.

بیت - حرف حلقی شش بود ای نور عین - همزه هاء حاء خاء عین غین ... حقانی غفرله

۲ - داچې نون ساکن په حالت کې دوقف په نون سره ویل کیږي او تنوین که دوه زوره وي په الف سره بدلیږي لکه اَغْنَابًا۔
**۲** - اخفاء - داخفاء لغوي معنیٰ ده پټوالئ - او په اِصطلاح کې یو حالت دی په مابین داظهار او ادغام کښې چې خالي وي دَ تشدید څخه سره د ابقاء دغُنې په اول حرف کې ۔
حروف داخفاء پنځلس[۱۵] چې جمع کوي لئ ستا دا قول۔
سَتُجْزَ صَدَّ لَكَ فِتِقٌ ضطظ شَذْ ۔
هر کله چې د دې پنځلسو حروفو مخ ته نون ساکن او یا تنوین راسي نو دې ته اخفاء حقیقي وائي کرپه یوه کلمه کې وي که په دوو کلمو کې وي۔
مثال د دوو کلمو لکه مِنْ سَعَتِهِ۔ مَنْ تَابَ، مَنْ جَاءَ، فَاِنْ زَلَلْتُمْ وَمَنْ صَلَحَ، مِنْ دَابَّةٍ، فَاِنْ فَعَلْتَ۔ مِنْ ثَمَرَةٍ، مِنْ قَبْلُ، مِنْ ضُرٍّ۔ مِنْ طَيِّبَاتِ، مَنْ ضَلَلْتُمْ، فَمَنْ شَاءَ، مِنْ ذَكَرٍ۔ اونور۔
مثال د نون ساکن په یوه کلمه کې لکه اِنْسٌ، اَنْتُمْ، نُنْجِيْ، اَنْزَلَ يُنْصِرُوْنَ، اَنْدَادًا، مِنْكُمْ، يُنْفِقُوْنَ، مَنْثُوْرًا۔ يَنْقُضُوْنَ۔ مَنْضُوْدٍ، يَنْطِقُوْنَ۔ يَنْظُرُوْنَ، اَنْشَاَكُمْ، مُنْذِرٌ۔ اونور مشابه
۔ او مثال د تنوین د دې پنځلسو حروفو سره۔
فَوْجٌ سَاَلَهُمْ۔ قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ۔ قَوْمًا جَبَّارِيْنَ۔ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا، قَوْمًا صَالِحِيْنَ۔ قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ، يَوْمًا كَانَ، وَاحِدَةٌ فَاِذَاهُمْ شَهِيْدًا ثُمَّ، صَالِحًا قَالَ، قِسْمَةٌ ضِيْزٰى، حَلَالًا طَيِّبًا، ظِلًّا ظَلِيْلًا، اُمَّةٍ شَهِيْدًا، يَتِيْمًا ذَا مَقْرَبَةٍ۔ اونور مشابه د دې۔
**۳** - ادغام - دادغام لغوي معنیٰ ده داخِلول د یو شي په بل شي کې او په اصطلاح کې داخِلول د حرف ساکن دی په متحرك کې په داسې

شان سره چې دواړه یو حرف متحرك جوړېږي . او ټ به ورباندې په
یوه پله پورته کېږي.

(حروف د ادغام شپږ دي)

چې مجموعه یې ده یَرْمَلُوْنَ، په دې شپږو کې ادغام کول کېږي
په څلورو کې ادغام سره د غنې چې مجموعه یې ده یَنْمُو -
هر کله چې د نون ساکن او تنوین وروسته یو حرف د دې حروفو څخه
راسي لکه وَمَنْ یَّعْمَلْ - لَنْ نَّصْبِرَ، وَمَنْ مَّعَهٗ، مَنْ وُّجِدَ،
او نور د دې مشابه.

او مثال د تنوین لکه مَسْغَبَةٍ یَّتِیْمًا، حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَکُمْ، بِکَلِمَةٍ مِّنْهُ
کَثِیْرًا وَّ سَبِّحْ، او نور مشابه د دې.

او د ادغام هغه وخت کېږي چې په مابین د دوو کلموکې وي او تنوین
بر قیلوي - او که چېرې د نون ساکن یا تنوین وروسته حروف یَرْمَلُوْن
په یوه کلمه کې راغله هلته بیا ادغام نه کېږي بلکه هلته اظهار کېږي او
دې اظهار ته اظهار مطلق وائي.

۴- ادغام بیله غنې - د دې دوه حرفه دي - لام، ر - هر کله چې د نون
ساکن او تنوین وروسته د ا دوه حرفه راسي هلته ادغام بیله غنې
کېږي لکه مِنْ لَّدُنْ، مِنْ رَّبِّهِمْ - دا مثال د نون دي او مثال
د تنوین لکه هُدًی لِّلْمُتَّقِیْنَ، غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ - او نور یې مثل د دې.

۵- اِقْلَاب - لغوي معنی د اقلاب ده اړول - او په اصطلاح
کښې اړول د نون ساکن او تنوین دي په میم سره د اخفاء،

---

له او دلته چې ادغام نه کېږي نو دې سببه چې که چېرې ادغام وکړه سي بیا النباس د مضاعف سره راځي یعني بیا نه معلومېږي چې دا دوي باب د مضاعف دي او که په قاعده د یرملون ادغام سوي دي.
احقر فضل الحق حقاني غفرله الباري.

په لیکلو کې نه بلکه په تلفظ کې۔ داقلاب یو حرف دی یعنی
بـاء ۔ هر کله چې د نون ساکن یا تنوین وروسته باء راسی هلته
اقلاب کیږی که په یوه کلمه کې وی که په دوو کلمو کې وی مثال د نون
په یوه کلمه کې أَنۢبِئْهُم ۔ مثال د نون په دوو کلمو کې لکه مِنۢ بَعْدِ
مثال د تنوین د باء سره جَزَآءًۢ بِمَا، عَلِيمٌۢ بِمَا. او نور دی په مثل۔
وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

# فصل په بیان د احکامو د میم ساکن کی

**یوه سه:** چې میم ساکن لره دری حکمه دی۔
۱۔ اظهار شفوی ۲۔ اخفاء شفوی ۳۔ ادغام صغیر مثلین۔
**اظهار شفوی**۔ د ۲۸ حروف هجاء څخه د باء۔ او میم۔ علاوه
که بل څه حرف راغلی هلته د میم ساکن په اظهار سره ویل پکار دی
او د اظهار حروف شپږ ویشت دی۔ مثالونه د میم ساکن د دې
شپږ ویشت حروفو سره لکه۔ اَمْ اٰتَيْنٰاهُمْ، تَمْتَرُوْنَ، اَهُمْ خَيْرٌ،
فِيْ دَارِكُمْ ثَلٰثَةَ، اَمْ جَعَلُوْا، عَلَيْهِمْ حَافِظِيْنَ، لَهُمْ دِيْنُهُمْ
رَبُّكُمْ ذُوْرَحْمَةٍ، تَمْرَحُوْنَ، اَمْ زَاغَتْ، او نور به مثل د دی۔
اظهار شفوی په یوه کلمه او د دوو کلمو په مابین کې راتلای سی۔
**اخفاء شفوی**۔
د دی یو حرف دی چې باء ده هر کله چې د میم ساکن وروسته باء راسی
هلته اخفاء شفوی کیږی لکه وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا۔
اخفاء شفوی بیله د دوو کلمو نه سی راتلای۔ مثالونه یې ذکر سوه۔

ادغام صغیر مثلین - د دې حرف دی کله چې د میم ساکن وروسته بل میم راسی نو هلته ادغام کیږی دی ته ادغام صغیر مثلین وائی مثال ئې لکه وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ لَهُمْ مَّا يَشَآؤُنَ -

ادغام صغیر مثلین دا دی چې دوه حرفه په مخرج او صفت کښې یو وی اول ساکن ثانی متحرک وی مثال ئې لکه اِذْهَبْ بِّكِتَابِي، فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ، قَدْ دَّخَلُوْا، وَاذْكُرْ رَّبَّكَ، فَقُلْ لَّهُمْ، يُدْرِكْكُّمْ، يُوَجِّهْهُّ لَنْ نَّدْعُوَا۟ اومشابه د دې -

اوکه دا دوه حرفه دواړه متحرک وه بیا ورته مثلین کبیر وائی مثال ئې رَبِّ بِمَآ اَنْعَمْتَ، ذِكْرُ رَحْمَتِ، ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ، مَنَاسِكَكُمْ، جِبَاهُهُمْ، اَلرَّحِيْمِ مٰلِكِ، اونور د دې مشابه.

# فصل په بیان د مُتقاربین او مُتجانسین کی

پوهسه: چې متقاربین هر هغه دوه حرفه دی چې په مخرج کی سره نژدی وی او په صفاتو کی سره جلاوی - یا په مخرج او صفت دواړو کښې نژدی لکه، لام، او، راء، مثال ئې لکه قُلْ رَّبِّ -

و دی ته ادغام صغیر متقاربین وائی. ادغام په دی چې اول په دوهم کی پټ سو متقاربین په دې ورته وائی چې نژدی دی په مخرج او صفت کی - صغیر په دی ورته وائی چې اول ساکن او دوهم متحرک دی.

اوکه دواړه متحرک وی بیا متقاربین کبیر ورته وائی. لکه رُسُلُ رَبِّكَ قَالَ رَبِّ. اونور مشابه د دې -

اولکہ ذال چې د زاء سره راسی لکه وَاذْزَيَّنَ، اونور د دی مشابه۔
اولکه قاف د کاف سره مثال ئې اَلَمْ نَخْلُقكُّمْ، سورۃ مرسلات۔
پردی لفظ کی دوی وجهې جائز دي۔
۱۔ دا چې تلفظ په کاف سره داسی وسی چې دلوی قاف هیڅ ظهور
د صفت نرسی پاتہ دې تہ ادغام متقاربین کامل او تام وائی
۲۔ دا چې تلفظ په قاف داسی وسی چې د اول حرف یو صفت ښکاره
سی ادغام خالص نروی دې ته ادغام متقاربین ناقص وائی
هدا رنگه پردې نور قیاس که۔

**متجانسین** - دا ادغام د دوو داسی حروفو دی چې متفق په مخرج
کی او مختلف په صفت کی وی یا د دی عکس پر قول د بعض علماوو۔
مثال ئې لکه ادغام د دال په تاء کی لکه قَدْتَبَيَّنَ -

ادغام پردی ورته وائی چې اول مدغم دوهم مدغم فیه دی۔ متجانسین
په دی ورته وائی چې په مخرج کی اتحاد او په صفت کی اختلاف دی
**صغیر** ځکه ورته وائی چې اول ساکن او ثانی متحرک دی۔
او یا ادغام د "تاء" په دال کی لکه اُثْقَلَتْ دَّعَوَتُكُمَا نو دی ته هم ادغام
متجانسین صغیر وائی۔
یا لکه ادغام د تاء په "طاء" کی مثال ئې وَقَالَتْ طَّائِفَةٌ" دی ته هم
ادغام متجانسین صغیر وائی۔
یا لکه ادغام د ذال په ظاء کی یا ادغام د ثاء په ذال کی مثال ئې
لکه اِذْظَّلَمُوْا - يَلْهَثْ ذَّالِكَ، یا ادغام د "باء" په میم کی لکه
اِرْكَبْ مَّعَنَا -
او کوم چې ادغام د طاء دی په تاء کی لکه بَسَطْتَّ، اَحَطْتُّ، فَرَّطْتُّ

مَافَرَّطتُمْ. نو په دی څلورو کلمو ادغام متجانسين ناقص دی.
ادغام ځکه چې اول په دوهم کی پټ دی. متجانسين ځکه چې اتفاق په مخرج او اختلاف په صفت کی لری. صغير ځکه چې اول ساکن ثانی متحرك دی. ناقص ځکه چې تلفظ د طاء په منځ کی د اظهار او د ادغام دی. یعنی دلته نه پوره ادغام دی چې طاء په تاء سره بدلیږی بیله ظاهره کیدو د یو صفت. او نه اظهار چې طاء دی پوره د صفا تو سره اداسی.
او نور هم پر دا غر قیاس کړه . . . وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

# فَصَل دَی په بَیان دَحُکمِ دَغُنّی کښنی

پوهه سه: چې غنه یو آواز دی چې د پزی د دننه (نرمی) خلیشوم څخه راوځی د ژبی کار نسته په کښنی . او قراوو په اندازه کی د غنی اختلاف کړی دی .
خومشهوره په نزد د علما وو د دے فن دا ده چې د غنی مقدار دوه حرکته دی او دا قول ورد اعتماد او اتفاقی دی. او بعض وائی چې د غنی مقدار یو نیم حرکت دی. او په دی قول باندی عمل هغه وخت دی کله چې قرائت په «حدر» سره وی.
او بعض قراء تر دری حرکته پوری غنی ته جواز ورکوی . او په د ے قول سره عمل په نون مشدد او میم مشدد کښنی دی. ولی چې په دوی دوو کښنی غنه اصلی ده او که حالت د وصل وی که د وقف په دوی کښنی غنه لازمه ده . پر خلاف د هغه غنی چې په اخفاء یا

اقلاب کی ځکه چې هلته غنه عارضه ده ولې چې کرچیرې مدغم او مدغم فیه نو وی نو غنه نه کیږی له هغې وجهې غنه په کښی تر دوو حرکتو زیات ته جائز نه ده ـ او په نون مشدد او میم مشدد کی که غنه تر دوو حرکتو زیات ته سی هیڅ باک نسته دوجهې دغنه اصلی ـ

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

## فصل په حکم کښی د لام اَلْ چې شمسی یا قمری دئ او لام د فعل او لام د هَلْ او بَلْ

**پوښته:** چې لام د اَلْ پر دوه قسمه دی.

۱ـ قمریه ـ ۲ـ شمسیه ـ

لام قمریه هغه دی چې کله داخل سی پر کلمه باندی نو هغه لام ظاهر یږی او د (۲۸) حروف هجاء څخه څوارلس (۱۴) دی چې مجموعه یې ده ستا داقول اِبْغِ حَجَّكَ وَخَفْ عَقِيْمَهُ ـ

داحروف مسمی په حروف قمریه وو سره دی او دا حروف کی لام ظاهره کیږی مثال ئې لکه اَلْاَمْرُ، اَلْبِرُّ، اَلْغَيْبُ، اَلْحَمْدُ اَلْجَنَّةُ، اَلْكَرِيْمُ، اَلْوَلِيُّ، اَلْخَالِقُ، اَلْفَتَّاحُ، اَلْعَلِيْمُ، اَلْقَادِرُ، اَلْيَوْمُ، اَلْمَلِكُ، اَلْهُدٰى ـ او نور په مثل دد بے ـ

لام شمسیه هغه دی چې کله پر یو کلمه باندی داخل سی نو الف و لام نه ظاهر یږی بلکه په مابعد کی مدغم کیږی او حروف ئې څوارلس دی چې په دی شعر کی جمع سویدی ـــ ؎

طِبْ ثُمَّ صِلْ رِحْمًا تَفُزْ ضِفْ ذَا نِعَمٍ دَعْ سُوْءَ ظَنٍّ زُرْ شَرِيْفًا لِلْكَرَمِ

د دی حروف اول اول حرف مراد دی نو څوارلس حروفه سوه.
مثالونه لیٔ دادي. وَالطَّيِّبَاتُ، اَلثَّوَابُ، فَالصّٰلِحٰتُ، اَلرَّزَّاقُ
اَلتَّوَّابُ، وَالضُّحٰى، اَلذِّكْرُ، اَلنَّجْمُ، اَلدَّهْرُ، اَلسَّمَاءُ،
وَالظَّمْاٰ، اَلزُّرَّاعُ، اَلشَّهِيْدُ، اَلَّيْلُ، اومشابه دد ي.

## - لام دَ فعل -

او هغه لام چې واقع سي پر فعل مَاضِي يَا امْرْ باندی هغه ظاهریږی
او دي لاکته لام فعل ویل کیږی د فعل مثال لکه. فَالْتَقٰى
فَانْتَقَمْنَا، وَجَعَلْنَا، فَعَلْنَا، اَرْسَلْنَا، قُلْنَا، قُلْ، نَعَمْ.
وَالْيُوْفُوْا، وَالْيَطَّوَّفُوْا. اونورپه مثل ددي.

## دَ لام هَلْ او بَلْ حکم

د هَلْ او بَلْ لامونه په خپل مثل کی مدغم کیږی. او همدارنګه
ادغام کیږی په راء کی پر مذهب د حفص رحمة الله عليه -
او په نورو ټولو حروفو کی ظاهریږی مثال دادغام د لام لکه
هَلْ لَكُمْ، بَلْ لَا يَخَافُوْنَ، بَلْ رَّبُّكُمْ، قُلْ لَا يَعْلَمُ،
قُلْ رَّبِّيْ. اونور مشابه ددي.

# فصل په بیان دَ مد او اقسامو د مد کی

**پوښتنه:** چې مَد لغوی معنیٰ ده اوږدوالی او زیات والی دَی
او په اِصطلاح کی دقراوو. اوږدوالی دآواز دی پر یو حرف د
دحروف مده وو. او حروف مده دري دي. واو، الف، یاء.
مد پر دوه قسمه دی - ١- مَد اصلی ٢- مَد فرعی.

**مداصلي** هغه مد دی چې موقوف پر یو سبب نه وي. او تر حرف مده وروسته همزه او سکون نه وي.

**مدفرعي** هغه مد دی چې موقوفه پر سبب وي.

**سبب مدفرعي**: د مدفرعي دوه سببه دي ۱. همزه ۲. سکون

## «انواع مد»

د مد په قسمونو کی د قراء و اختلاف دی. ۱. بعضی قراء اقسام د مد اته بولي. ۲. د بعضی قراوو په نزد لس دي ۳. او د بعضی قراوو په نزد شپاړس دي. او د بعضو قراوو په نزد تر دی هم زیات دي.

خو دا اختلاف حقیقي نه دی بلکه اعتباری دی. او د مد هغه قسمونه چې موږ د لته ذکر کړی دي هغه یوولس دی چې هغه نو

۱. مد طبیعي ۲. مد بدل ۳. مد متصل ۴. مد منفصل ۵. مد لازم ۶. کلمي مخفف ۷. کلمي مثقل ۸. حرفي مخفف ۹. حرفي مثقل او مد عارض للسکون ۱۰. مد عارض بالروم ۱۱. مد عارض للاشمام.

## مد طبیعي

چې نوم یې مد اصلي دی هغه دی چې موقوف پر سبب نه وي او اندازه د مد کولو یې دوه حرکته ده نه زیاتیږي نه کمیږي او حروف یې دری دي. الف ساکنه چې ماقبل یې مفتوح وي یاء ساکنه چې ماقبل یې مکسور وي. واو ساکنه چې ماقبل یې مضموم وي مثال یې لکه دا قول د خدای جل جلاله نُوْحِيْهَا. قَالَا. مُوْسٰی. عِلِيْنِی، اَخِیْ، اَمْرِیْ، او په مثل دد ي.

او مد بدل دا دی چې واقع سی همزه ساکنه وروسته تر همزه متحرکه

همزه ساکنه بدله کړه په داسې حرف علت سره چې هغه د جنس د ما قبل د حرکت وي یعنی که اول همزه متحرکه مفتوحه وه نو همزه ساکنه په الف سره بدلول پکار دي لکه اٰمَنُوْا چه اصل یې اَءْمَنُوْا وو همزه ساکنه په الف سره بدله سوه اٰمَنُوْا سو.

او که ما قبل د ساکنه همزه مضموم وو نو همزه ساکنه په واو سره بدلیږي لکه اُوْتُوْا چې اصل یې اُءْتُوْا وو همزه ساکنه په موافق د ما قبل د حرکت په واو سره بدله سوه.

او که ما قبل د همزه ساکنه مکسور وو بیا د همزه ساکنه په یاء سره بدلیږي لکه اِیْمَانًا اصل یې اِءْمَا نًا وو یاء ساکنه او ما قبل یې مکسور وو همزه ساکنه په یاء سره بدله سوه اِیْمَا نًا سو.

**سوال**: تاسو وویل چې په اٰمَنُوْا کې همزه په الف سره بدله سوه نو آیا فرق په ما بین د همزه او د الف سته.

**جواب**: فرق په ما بین د همزه او الف دا دی چې همزه هغه ده چې متحرکه او یا ساکنه ده چې ژر به حرکت ور باندي کوي. او الف همیشه ساکن بي له خه حرکته د ژبې.

**سوال**: حروفه مده او حروف لین څو دي؟

**جواب**: حروف مده دري دي الف ساکن ما قبل مفتوح واو ساکن ما قبل مضموم یا ساکنه ما قبل مکسور. او حروف لین دوه دي واو او یاء ساکن چې ما قبل یې مفتوح وي لکه قَضَیْتَ، وَالْمَوْتُ، وَالْبَیْتُ، وَشَیْءٌ، وَالسَّوْءِ. او نور د دي مشابه.

نو حکم د حرف لین په وقف کې حکم د مد عارض للسکون دی یعنی که چیري حرف موقوف علیه منصوب وي نو دري وجهي په کښي جائز دي.

۱- قصر ۲- توسط ۳- طول۔
اوکه حرف موقوف علیه مجرور وو نو بیا په وقف کی څلور وجهی جائز دی۔ ۱- قصر ۲- توسط ۳- طول ۴- قصر مع الروم۔
اوکه حرف موقوف علیه مضموم وو نو هلته اووه وجهی روا دی۔
۱- قصر ۲- توسط ۳- طول مع الاسکان ۴- قصر ۵- توسط ۶- طول سره د اشمام او ۷- قصر مع الروم۔
**سوال**: تاسو حروف مده او حروف لین کی واو او یا ذکر کړه او سره دده هم چی په حروف هجاء کی دوه واوه او دوه یاء نشته۔
**جواب**: واو او یاء په حروف مده کی بعینه د غه واو او یاء په حروف مده کی دی لکن د تکرار سبب ئې په سبب د اختلاف د شرطو دی وګوره چی واو مده کی شرط د ما قبل ضمه ده او په یاء کی د ما قبل کسره ده۔ او په حروف لین کی شرط فتحه د ما قبل ده۔
**سوال**: مد بدل څو حرکته دی۔
**جواب**: مد بدل دوه حرکته دی۔ خو دلته دا سوال پیدا کیږی چی فرق په ما بین د مد طبیعی او مد بدل څه سو!
**جواب**: مد بدل زیادت قبلوی په نزد د ورش او مد اصلی زیادت نه قبلوی په نزد د ټولو قراوو۔
**سوال**: کوم شی دی چی دلالت کوی پر زیادت د مد بدل۔
**جواب**: هغه شی چی دلالت کوی پر زیادت د مد بدل وجود د همزه دی۔

## فصل په بیان د حکم د مد متصل او منفصل

**پوښتنه**: چی هر کله وروسته تر حروف مده وو همزه راسی هلته مد

کیږی۔ بیانو کہ چیری دا حروف مده او همزه په یوه کلمه کی وی لکه اُولٰٓئِكَ، یَشَآءُ، اَبْنَآءُ، سَوَآءٌ۔ او نور ددی مشابه.

دی ته مد متصل وائی۔ لہ دی سببہ چی حرف مده او سبب مد په یوه کلمه کی دی اود ي ته مد واجب هم وائی۔ واجب پہ دی وجه چی په اتفاق د ټولو قراوو مد واجب دی قصر نا جائز دی.

او اندازه دَ مد یی شلور یا پنځه حرکته ده او د وقف پہ حالت کی تر شپږ حرکتہ پوری مد کول جائز دی لکہ مد عارض للسکون.

حکم د د ے مد متصل دادی

چی کہ چیری دا همزه مفتوحه وه پہ د ے کی دری وجهی روادی۔

١۔ قصر ٢۔ توسط ٣۔ طول۔ د سکون خالص سره۔

او کہ دا همزه چی وقف با ندی وسو مجروره وه بیا شلور وجهی پکښی روادي۔ ١۔ قصر ٢۔ توسط ٣۔ طول سره د سکون او ٤۔ قصر سره د روم۔

او بعض قراوو د روم پہ حالت تر پنځه حرکته پوری مد جائز بولی نو پردي تقدیر پہ مجرور کی پنځه وجهی جائز د ے۔

او کہ دا حرف موقوف علیہ مرفوع وو بیا اووه وجهی روادي۔ ١۔ قصر ٢۔ توسط ٣۔ طول دَسکون سره ٤۔ قصر ٥۔ توسط ٦۔ طول د اشمام سره ٧۔ روم د قصر سره۔

او په هاء ضمیر کښی د بعض قراوو پہ نزد روم او اشمام نہ دی جائز او بعض قراء د تقسیم قائل د ے۔ ١۔ کہ چیری تر هاء ضمیر مخکښی زیر یا پیښ یا "یا" ساکنه یا واو ساکنه وو نو هلته روم او اشمام نہ دی جائز لکہ یَرْفَعُهٗ، بِهٖ، وَلِیَرْضَوْهُ، اِلَیْهِ، وَعَلَیْهِ، او نور.

۲۔ اوکه د هاء ضمیر مخکی زور وو، یا الف وو، یا صحیح ساکن وو هلته روم او اشمام جائز د ے۔ لکه رَبَّهُ، هَدَاهُ، مِنْهُ، عَنْهُ،
او معتمد قول جواز دی مطلقًا۔

فرق په ما بین کی د هاء تانیث او هاء ضمیر

تاء تانیث صرف دوقف په حالت کی په هاء سره بد لیږی او هاء ضمیر په دواړه حالتو کی په هاء سره ویل کیږی۔

# فصل په بیان د حکم د مد متصل او منفصل کی

**پوه سه**، هر وخت چی وروسته تر حروف مده همزه راسی او دا همزه او حروف مده په یوه کلمه کی وی لکه اُولٰٓئِكَ، یَشَآءُ، اَبْنَآءِ، سَوَآءٌ، سُوْٓءُ، جِیْٓءَ، او نور د دی مشابه نو دی ته مد مُتصل وائی۔ ولی چی یو ځای والی د حرف مد او همزه یعنی سبب مد او محل مد راغلی دی۔

اوکه مد په یوه کلمه کی وو او همزه په بله کلمه کی وه هغه ته **مد منفصل** وائی لکه وَمَآ اَنْزَلْنَا، وَلَآ اَعْلَمُ، وَفِیْٓ اَنْفُسِكُمْ، رَبِّیْٓ اَعْلَمُ قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ، او نور د دے مشابه۔ د ے مد ته په دی منفصل وائی چی سبب مد یعنی همزه په یوه کلمه کی او محل مد په بله کلمه کی دی۔ اندازه د مد په ځلور یا پنځه حرکته ده۔ او د ے ته **مد جائز** هم وائی ځکه چی دوه حرکته مد کول هم په کښی جائز دی په وخت د قصر کولو،،

**تنبیه**: پوه سه چی مد د «یا»، او «ها»، هر ځای چی په قرآن مجید

کی راسی او وروسته ئې همزه راغلې وی په کی اختلاف دی لکه
یَـآ اَیُّهَا، وَهَـآ اَنْتُمْ، اونور په مثل ددی۔
نو بعض قراء والئ دا مد متصل دی ولی مد او همزه په یوه کلمه کی
دی۔ لکن دا قول د اعتماد ورنه دی صحیح قول دادی چې دا مد منفصل
دی ولی چې حرف مَد په یوه کلمه کی دی (چې هاء د تنبیه ده) او
همزه په بله کلمه کی ده چې (اَئِ یا اَنْتُمْ) دی۔
او په کلمه د هَـآؤُمُ په سورة الحاقة کی په اتفاق سره مد متصل دی

# فصل دی په اقسامو د مَد لازم کی

**پوهه سه:** چې مَد لازم پر څلور قسمه دی۔
۱۔ مد لازم کلمی مثقل ۲۔ مَد لازم کلمی مخفف ۳۔ مد لازم حرفی مثقل
۴۔ مد لازم حرفی مخفف۔
۱۔ **مد لازم کلمی مثقل** هغه مد دی چې وروسته تر حروف مَد حرف مشدد
راسی لکه حَآجَّكَ، وَلَا الضَّآلِّيْنَ، آٰللّٰهُ، آٰمِّيْنَ، اونور په
مثل ددی۔ او اندازه د مَد یه شپږ حرکته ده نه زیاتیږی نه کمیږی۔
**لازم**۔ په دی دی چې مد ئې لازم دی قصر یې کښنې جائز نه دی۔
**کلمی**۔ په دی وریته ویل کیږی چې په کلمه کی دی۔
**مثقل** په دی چې وروسته تر حروف مده مشدد حرف دی۔
۲۔ **مد لازم کلمی مخفف**؛ دادی چې وروسته تر حروف مده
ساکن حرف راسی لکه آٰلْآٰنَ، دوه ځایه په سورة یونس کی او اندازه
د مد یه شپږ حرکته ده۔

**مد لازم:** په دې چې شپږ حرکته مد کول ئې لازم دی.
**کلمي:** په دې چې په کلمه کې دی په حروفو کې نه دئ.
**مخفف:** په دې چې وروسته تر حروف مده سکون راغلی دئ.

**۳- مَد لازم حرفي مثقل:**

هغه دی چې وروسته تر حروف مَده په حروف مقطعاتو کې حَرف مشدد راسی لکه الٓمٓ، طسٓمٓ، چې میم په دواړه مثالو کې مشدد دی. او اندازه د مَد ئې شپږ حرکته ده.
د لازم او مثقل وجهي هغه دي. او حَرفي په دې وجه چې په حروفو کې راغلی دی.

**۴- مَد لازم حرفي مخفف:**

هغه دی چې وروسته تر حروف مده ساکن راسي یعنی مشدد نه وی لکه په الٓمٓ کې د "میم" سکون او لکه الٓر، کٓهیٰعٓصٓ او نور د دی مشابه. د لازم، حرفي وجهي هغه دی **مخفف** په دې د حروف مده وروسته مشدد حرف نسته.

## تنبیهات «د آګاهي»

**اوله تنبیه.**

په قرآن مجید کې شپږ کلمې دې چې په هغه مَد لازم سره ویل کیږی چې دري الفه دی کم از کم. او په تسهیل سره ویل ئې هم جائز دی. هغه یو کلمه دَ آلذَّکَرَیْنِ، دوه ځایه په سورۃ انعام کې، آلْاٰنَ، دوه ځایه په سورۃ یونس کې آللّٰهُ په سورۃ یونس کې آللّٰهُ په سورۃ نمل کې
**د تسهیل کیفیت:** دا دی چې دوهمه همزه چې د لام تعریف همزه ده په مابین د همزه او د الف ویل بیله مد کولو. دواړی وجهي صحیح دي

لکن مد لئ افضل دی ۔ او دی مدته **مد فرق** هم وائی۔
ولې چې فرق په مابین کې د جملهٔ خبریه او استفهامیه راولی۔

**دوهمه تنبیه:**

په روایت حفص کې په ټوله قرآن مجید کې په لفظ دءَاَعْجَمِیٌّ کې تسهیل دی چې په سورة فصلت کې دی۔ یعنی همزه په مابین کې د همزه او د الف ویل بیل مده۔ او په کوم قول کې چې تسهیل په مابین د همزه او د هاء دی هغه ضعیف دی۔ بل ځای تسهیل په دی روایت کې نشته!

**دریمه تنبیه:**

په لفظ کې د "مَجْرٖیهَا" [ل] چې په سورة هود کښې ده په روایت حفص کې دا لفظ په اماله سره ویل کیږی او مراد د اماله نه اماله صُغری ده یعنی د لته به میلان د الف وطرفته د "یاء" وی او میلان د زور به وطرفته د زیر وی۔ او راء د مَجْرٖیهَا باریکه ده۔ په روایت حفص کې د دی لفظ نه ماسوا بل ځای اماله په ټوله قرآن کې نشته۔

# فصل دی په بیان دَ اقسامود مدعارِض للسکون

**پوهه سه:** چې مد عارض للسکون پر دری قسمه دی۔

۱۔ منصوب ۲۔ مجرور ۳۔ مرفوع۔ **منصوب** لکه اَلْعَالَمِیْنَ ط وَالْمُؤْمِنُوْنَ ط او نور یه مثل د دی۔ او په منصوب کې دری وجهې دی

۱۔ قصر ۲۔ توسط ۳۔ طول۔

**قصر** دوه حرکته دی **توسط**، څلور حرکته دی **طول** شپږ۔

[ل] لفظ د مجریها کې چې کومه اماله ده دا اماله صغري ده چې بل نوم ئې تقلیل، توسط، او بین بین دی وګوره تنشیط الطبع قواعد د ورش کړ څه هم مصنف د لفظ د اماله کبری ذکر کړی ۱۲ احقر فضل الحق غفرله

حرکت دی۔

**د حرکت معلومولو طریقه:** دا ده چې خلاصي ګوتې بندې کړه یا بندې ګوتې خلاصې کړه۔ نو دا تول لوځغز یا بندولو ځغز پرمیانه حال باندې دا اندازه د قصر، توسط، او طول معلومیږی۔ یعنی په قصر کی یو وار ګوته بندول او خلاصول، په توسط کی دوې ګوتې بندول او خلاصول، او په طول کی درې ګوتې خلاصول او بندول۔

۲- **مجرور** لکه يَوْمِ الدِّيْنِ ، اَلرَّحِيْمِ، اونور ددې مشابه۔ په دې مجرور کی په حالت د وقف کښې څلور وجهې جائز دي۔

۱- قصر ۲- توسط ۳- طول۔ د اسکان سره او ۴- قصر مع الروم۔

**روم**۔ دې ته وائي چې بعض حرکت سره د وقف کولو وویل سی چې د هغه اندازه په نزد د قراؤ دریمه د حرکت ده۔ چې نزدې ناست سړی ئې واوري او لیرې ئې وانه وري۔

او که پر تنوین دا ره کلمه باندې وقف وکړل سی بیا صرف د یوه حرکت دریمه حصه ښکاره کیږي نه د تنوین۔

۳- **مرفوع**: لکه نَسْتَعِيْنُ، اَمِيْنٌ، كَرِيْمٌ، اونور د دې مشابه۔ او په مرفوع کښې اووه وجهې جائز دي۔

۱- قصر ۲- توسط ۳- طول د اسکان سره او ۴- قصر ۵- توسط۔

۶- طول۔ د اشمام سره ۔ ۷- قصر مع الروم۔ ولې چې د روم سره توسط، او طول نه رائحي لکه چې دا په فن تجوید کی مشهوره ده۔

او **اشمام** - اشاره ده په شونډو سره وطرفته د پلیش وروسته تر سکون، بیله ساه اخستلو۔ او د اشمام ادراک په سترګو سره کیږی هر کله چې د تلاوت کوونکی وخوله ته متوجه وي۔

**د اشمام غرض:** دَ اشمام غرض دا دی چې فرق په مابین کی د هغه ساکن چې په اصل کی متحرك وی او سکون ورته عارض وی ... او د هغه ساکن اصلی چې په وصل او وقف دواړو کی ساکن وي.

ولی چې اشاره په شونډو سره و طرفته دَ پیش کتونکی ته دلالت ورکوی چې د احرف په اصل کی متحرك وو.

او بعض علماء وائی چې د روم او اشمام فائده اصلی حرکت ښکاره کول دی کوم چې په حالت د وصل کی ده ته ثابت وو.

دا هلته کیږی چې کرچیری اوریدونکی په روم کښی او کتونکی په اشمام کی وتلاوت کونکی ته متوجه وی او که توجه نه وی بیا نه روم سته نه اشمام.

او د سورة یوسف په دی کلمه کی ( لَا تَأْمَنَّا ) دوی وجهی د ادغام سره اشمام او د اظهار سره روم، یواځی ادغام او یواځی اظهار نه دی جائز.

# تنبیه

تاسو ته معلومه سوه چې په عارض کی چې منصوب وی صرف دری دری وجهی جائز دي.

او په مجرور کی څلور وجهی جائز دي. او په مرفوع کی اووه وجهی جائز دے. دا هغه وخت چې وقف پر تاء د تانیث نه وي.

لکن کرچیری وقف پر تاء چې په وقف کی په هاء سره بدلیږی وو نو بیا د درو وجهو یعنی ۱- قصر ۲- توسط ۳- طول نه علاوه نوری وجهی جائز نه دي لکه اَلصَّلٰوةَ - وَالزَّکٰوةَ - وَالتَّوْرٰاةَ.

او هم دا رنگه پر دا سو هاء باندی اشمام او روم نه دی جائز.

---

اوکه چیرې[له] وقف پرداسې هاء ضمیر وو چې هغه په سبب د متحرك والی
د ماقبل اود مابعد په اشباع سره د حرکت وېل کیده نو په دې کې دوه
قوله دي۔ یو قول دا دې چې د دې مد حکم حکم د مد عارض دی
للسکون یعنی که مجروره وه[۲] خلور وجهې په کښې جائز - ۱۔ قصر ۲۔
توسط ۳۔ طول د سکون سره او ۴۔ قصر مع الروم۔ اوکه مرفوع
وو او ۷ وجهې په کښې جائز دي ۔ ۱۔ قصر ۲۔ توسط ۳۔ طول د
سکون سره ۔ او ۴۔ قصر ۵۔ توسط ۶۔ طول د اشمام سره او ۷۔ روم
سره قصر۔
او بعض قراء مطلقًا روم او اشمام په هاء ضمیر کې منع بولی۔
او بعض تفصیل والې لکه چې ذکر سوه۔

# فصل په بیان د سکون عارض بیله مده

**پوهسه:** چې که چیرې وقف پر ساکن عارض وو بیله مده لکه
اَلْبَرْ، وَالْاَمْرُ، اَلْاَرْضِ. او نور د دې په مثل. نو که داسې حرف موقوف
علیه منصوب وو یواځې وقف بالاسکان په کښې جائز دی او که

---

[۲] تشریح: اصل په هاء ضمیر کې پلبنی دی وه چې د دې اصل هُوَ دی. بیا نو که مخکې تر هاء زیر او یاء
نه وه نو هاء ضمیر خپل پر اصل یعنی ضمه باندې پاتې ده کله لَهُ، رَبُّهُ. او که مخکې زیر یا یاء وه اغلب
بیا هاء ضمیره پاتې د موافقت د ماقبل مجروره کیږي مگر نه خو ځایه چې مستثنی دي لکه بِهِ، اِلَيْهِ۔
او هاء ضمیر منصوبه نه سی راتللای ۱۲ احقر فضل الحق حقانی خادم التجوید والقرات

[له] تشریح: تاسو ته دی معلومه وه چې که چیرې ما قبل او ما بعد د هاء ضمیر متحرك وي هغه
هاء په اشباع سره ویل کیږي که چیرې پر هاء باندې زیر وي اشباع داسې کیږي چې یاء ځندی
پیدا سې او که پلبنی وه اشباع داسې کیږي چې واو ځندی پیدا سي ۱۲ تعلم احقر فضل الحق حقانی غفرله

موقوف علیہ حرف مجرور وو بیا سکون او روم پہ کښې جائز دے
او مرفوع وو بیا دری وجهې جائز دی سکون روم او اشمام۔
همدارنګه حکم دی د هاء ضمیر په حالت کې د وقف۔ او که وقف پر تاء
تانیث وو چې په وقف کې په هاء سره بدلیږی یو اځې وقف بالاسکان دی

# فصل په بیان د حروف مقطعاتو کې

**پوهه:** کوم حروف چې د سورتو په شروع کې دی خوارلس حروف
دی چې په دې قول کې راجمع سویدی۔ صِلْهُ سُحَيْرًا مَنْ قَطَعَكَ
۔ بیا دا خوارلس حروف پر دوه قسمه دی۔

۱۔ هغه دی چې حروف هجاء یا دری حرفه دی او د ما بین حرف په
مده دی دا سی حروف اته دی چې مجموعه یې دا ده کَمْ عَسَلٌ نَقَصَ۔
پر دې بیا لو بانه دی مد لازم دی ما سوا د۔ عین۔ مخیر په اول کی د سورة
مریم۔

پر میم مد لازم دی لکه۔ الٓمٓ بقره۔ الٓمٓ آل عمران بالاعراف، الرعد، الشعراء۔
والقصص، والعنکبوت، والروم، ولقمان، والسجدة،
او حٰمٓ او سین، ذکرسوی دے په اول کی د سورة شعراء، والنمل،
والقصص، ولیس، والشوری۔ لام ذکرسویدی په اول کی د سوره بقره۔
آل عمران، والاعراف، ویونس، وهود، ویوسف، والرعد، وابراهیم، والحجر، و
العنکبوت، والروم، ولقمان، والسجدة۔ نون ذکرسوی دی په اول کی د
سورة قلم یعنی نٓ والقلم، قاف ذکرسوی دی د سورة شوری په
اول کی د قٓ والقرآن۔ صاد، ذکرسوی دی په اول کی د سورة

اعراف او سورة مریم۔ او کوم چې عین دی نو مشهور دا ده چې دی
په مد لازم کښې نه دی داخل۔
او په ده کې دوې وجهې رواد ې څلور حرکته قدر مد او شپږ
حرکته مد او شپږ حرکته مد اولی او افضل دی۔
او د دوه حروف مقطعات: چې د سورتو په شروع کې راغلي دغه
پنځه دی چې په دې قول کې جمع سوي دي۔ حَيٌّ طَهُرَ۔
پردی نو لوم مد طبیعي کیږی ولې چې وروسته تر حروف مده همزه
یا سکون نسته کوم چې د اقسامو او د اسبابو څخه د مد فرعي دی۔
**اوله تنبیه:**
هر کله چې یو ساکن اصلي ته حرکت ور کول کیږی هغه د پاره د ځان
خلاصولو د التقاء ساکنین څخه لکه، الٓمٓ اللّٰهُ، په اول کې د سورت
آل عمران چې میم هم ساکن او لام هم ساکن دی په حالت د وصل کې
نو د یو ځای والی څخه د دوو ساکنو میم ته زور ور کړل سو۔ نو دلته
دوې وجهې جائز دي مد او قصر۔ **مد** دری الف نظرا او اصل
ته چې په اصل کې دیاء وروسته میم ساکن دی۔
چې دی ته لئ مد لازم مخفف ویل۔ او دا افضل هم دئ۔
او **قصر** یو الف کله چې نظر و او سني حرکت عارضي ته و کړل سي
**دو همه تنبیه:**
په یٰسٓ وَالْقُرْاٰنِ۔ او نٓ وَالْقَلَمِ کې که څه هم د نون ساکن
وروسته حروف د "یَرْمَلُوْن" راغلي دي لکن په روایت حفص کې دلته
ادغام نه کیږی ولې چې دا حروف مقطع جلا جلا ویل کیږی هغه اتصال
نه سو پاته کوم چې د ادغام د پاره شرط دئ۔

# فصل په حکم د هاءِ ضمیر کې

**پوه سه:** چې هر کله هاء ضمیر واقع په مابین د دوو متحرکو سی یعنی ماقبل او مابعد یې دواړه متحرک وی - نو په دې حالت دوصل کې مد باندې کیږی - لفظاً که څه هم لیکلی نه وی - دې مد ته مد طبعی او ورته صله قصیره هم وائی. لکه كَانَ بِهٖ بَصِيْرًا، لَعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ - او که چیرې وروسته تر هاءِ ضمیر همزه راغله.

بیا د حرکت د هاء په داسې اشباع سره وییل کیږی ترڅو مد جائز منفصل ورڅخه پیدا سی که څه هم دا حرف مد په شکل سره لیکلی نه دی. لکه وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ، نَفْسِىْٓ اِنَّ النَّفْسَ، وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ، او نور د دې مشابه.

او دې ته مد منفصل او صله کبیره هم ورته وییل کیږی.

**او که هاء ضمیر:**

واقع په مابین د دوو ساکنینو سره هلته بالکل مد نه کیږی. لکه عَلَيْهُ اللّٰهُ، وَاٰتٰهُ اللّٰهُ، او نور د دې په مثل.

**او که ماقبل د هاء ضمیر:**

متحرک وی او وروسته یې ساکن وی بیا هم مد نه وربا ندې کیږی لکه اِسْمُهُ الْمَسِيْحُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَلَهُ الْمُلْكُ. او نور د دې مشابه

**او که ماقبل ساکن:**

او وروسته متحرک وی بیا هم په نزد د حفصؒ مد نه پرکیږی

---

ل تشریح: د قراءات عشره متواتره وو څخه یو قاری ابن کثیر مکی رح په داسې هاء ضمیر کې چې مابعد یې متحرک وی په ټوله قرآن مجید کې اشباع کوی که څه هم ماقبل یې ساکن وی، اختر فضل الحق حقانی غفرله

لکه فِیْهِ هُدًی، تُخْفُوْهُ، اِلَیْهِ. او نور ددې مشابه.
لکن ددې قاعدې څخه دالفظ مستثنیٰ دی» فِیْهٖ مُهَانًا» په سورة فرقان کې ځکه چې دحفص دي دلته مد طبعي کوي پرهاء باندې
او دا قول دخدای دی.
لَئِنْ لَّمْ یَنْتَهِ، مَا نَفْقَهُ کَثِیْرًا، فَوَاکِهَ کَثِیْرَةٌ، او نور ددې
په مثل دلته مد نه کیږي ولې چې دلته دا هاء هاء د ضمیر نه ده بلکه
د نفس کلمې څخه ده.

## اوله تنبیه:

په قرآن مجید کې دوولس کلمې داسې دي چې نوشته په هاء ساکنه سره دي او حفص هم په هاء ساکنه سره وئیلي دي وقفاً او وصلاً هغه کلماتې دا دي، لَمْ یَتَسَنَّهْ، په سورة بقره کې. اِقْتَدِهْ په سورة انعام کې، اَرْجِهْ، په سورة اعراف او شعراء کې فَاَلْقِهْ، په سورة نمل کې. کِتَابِیَهْ، دوه ځایه په سورة الحاقة کې. مَالِیَهْ سُلْطَانِیَهْ، هم دا رنګه په سورة الحاقة کښې، حِسَابِیَهْ دوه ځایه، بیا په الحاقة کښې مَا هِیَهْ، او په سورة القارعة کې.

## دوهمه تنبیه:

په قرآن مجید کې شپږ کلمې دي چې په حالت د وقف کې الف مده ویل کیږي او په حالت د وصل کې الف نه ویل کیږي هغه کلماتې دا دي
لٰکِنَّا، په سورة کهف کې. اَلظُّنُوْنَا، اَلرَّسُوْلَا، اَلسَّبِیْلَا. په سورة احزاب کې.
سَلٰسِلَا، قَوَارِیْرَا، په سورة الدهر کې.

## دریمه تنبیه:

هر ځای چې په قرآن مجید کې لفظ د اَنَا، یعنی ضمیر د مفرد متکلم راسي د وقف په صورت کې الف ویل کیږي او د وصل په صورت کې الف نه ویل

کیږی او دا په قرآن مجید کی ډیر ځایونه دی لکه أَنَا نَذِيرٌ، وَأَنَا أَعْلَمُ - أَنَا بَشَرٌ او داسی نور مثالونه.

# فصل په بیان د وقف او سکتو کی

**پوهسه**: چی د وقف لغوی معنیٰ ده مطلقًا بند والیٰ او په اصطلاح کی وقف عبارت دی د قطع کولو څخه د آواز بریوه کلمه دومره زمانه چی عادتًا په هغه کی ساه اخستلای سی - په دی نیت چی بیرته قرائت شروع کوی - نه په نیت د اعراض د قرائت څخه.

## وقف پر دری قسمه دی

-۱- وقف اِختباری ۲- وقف اضطراری ۳- اختیاری.

**وقف اختباری** د رسم خط متعلق او یا د پاره د اظهار د مقطوع او موصول - او یا بیان د محذوف د ثابت څخه - هرکله چی مُمتحن سوال وکړی یا د تعلیم د پاره چه وقف ښه کیږی.

**وقف اضطراری**:

دا دی چی قرائت کونکی ته عارض سی په سبب د تنګوالی د ساه یا عُجز یا هیری یا ماسوا د دی نو په دا وخت[سی] کښی وقف پرهره کلمه باندی وسی بیا به ابتداء[له] د اغه کلمی څخه کوی که چیری د ابتداء صلاحیت په در لودی او یا به د ما قبل څخه شروع کوی.

---

[له] تشریح: په دی اعاده کی یو دا ضروری ده چی وقف به د کلی پر منځ د کلمی نه کوي. دوهم دا چی پر کوم کلمه باندی ودریږی هغه به ساکنه کوي پر حرکت باندی به وقف نه کوی دریم دا که چیری په هغه کلمه کی دوه زورونه وه هغه به په الف سره بدلوی ۱۲ احقر فضل الحق حقانی غفرله

## وقف اختیاري:

دا دې چې پر داسې یو کلمه باندې وقف وکړل سي چې موقوف پر یو سبب د اسبابو نه وي.

## پوښتنه:

چې علماء وو په اقساموکې د وقف اختلاف کړی دی یعنې قسمونه د وقف اختیاري.

۱- بعض علماء وائي چې د وقف اختیاري درې قسمونه دي

۲- بعض علماء وائي چې څلور قسمونه دي.

۳- بعض علماء وائي چې پنځه قسمه دي.

۴- اوبعض علماوو تر دې هم زیات بللي دي.

او بعض علماء وو په دې اقسامو سره تعبیر په مراتبو کړی دی او داده هر چا خپله اصطلاح وي په اصطلاح کې جګړه نسته.

**خو ښه خبره داده.**

چې اقسام د وقف څلور دي.

**۱- وقف تام ۲- وقف کافي ۳- وقف حسن ۴- وقف قبیح**

وقف تام- هغه وخت چې پر داسې کلمې باندې وقف وکړل سي. چې هغه د ما قبل او د ما بعد سره نه تعلق لفظي ولري او نه معنوي. داسې وقف اکثره د آیتو پر سرو باندې وي لکه دا قول د خدای وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ بیا به له دې ځایه شروع کوي، إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا یا لکه وقف پر دې قول د خدای إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. بیا به شروع له دې ځایه کوي يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا، او کله کله د دې وقف تاکید وکړل سي چې هغه ته علماء وقف

لازم وائي - لکه وقف پر دی ایت کریمه وَلَاهُمْ یَحْزَنُوْنَ ط
او شروع د دی ایت کریمه څخه اَلَّذِیْنَ یَاْکُلُوْنَ الرِّبٰوا۔
او که چیری قاری دا ایت د ماقبل سره یو ځای کی نود اوریدونکی
په خیال کی به یو معنیٰ فاسده راسی۔ او کوم چی مقصودی معنیٰ ده
هغه به بدله سی۔ وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ او شروع د
همدا رنګه وقف لازم دی پر دی قول دخدای ج "اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا
وَجَاهَدُوْا. په سورة توبه کښی۔
او دا غه رنګه وقف پر دی قول دخدای ج " وَکَذٰلِكَ حَقَّتْ کَلِمَةُ
رَبِّكَ عَلَی الَّذِیْنَ کَفَرُوْٓا اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ ط او بیا شروع
په دی ایت: اَلَّذِیْنَ یَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ.
او نور هم پر دی باندی قیاس که۔
پر دی وقف لازم باندی وقف کول ضروری دی او د مابعد سره ئې
وصل روانه دی - او خاص بیا که چیری یو اوریدونکی پر تلاوت
باندی غوږ نیولی وی یا قاری په یو مجلس یا محفل کی تلاوت
کوی د د پ ے او قافو رعایت نهایت ضروری دی۔
د دی د پاره چی ایهام د معنیٰ غیر او مقصود غیر مقصود و نه ګرځی

## «وقف کافی»

دا دی چی وقف پر داسی کلمه باندی وسی چی هغه کلمه د ماقبل او
مابعد سره تعلق معنوی ولری او تعلق لفظی و نه لری۔ او د دی
د مابعد څخه ابتداء سندوی لکه وقف پر دی قول دخدای ج جل جلاله
اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ۵ او ابتداء د دی ځایه وسی خَتَمَ اللّٰهُ
عَلٰی قُلُوْبِهِمْ۔ او همدا رنګه وقف پر دی قول دخدای جل جلاله

وَمَا یَشۡعُرُوۡنَ ۃ اوابتداء د دې قول څخه دخدای فِیۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ.
همدارنګه وقف پر، بِمَا کَانُوۡا یَکۡذِبُوۡنَ ۃ او ابتداء په دې
قول دخدای وَاِذَا قِیۡلَ لَهُمۡ،
او همدارنګه نور مثالونه د وقف کافي په قرآن مجید کی.
دالفظ داوقفِ کافي لفظاً تام دی او د معنیٰ د لحاظه تام نه دی.

## «وَقف حسَن»

دادی چې وقف پر داسی کلمه باندی وسی چې هغه د مابعد یاد ماقبل
سره تعلق لفظي ولري سره د پوره والی د کلام پر داغه کلمه.
او دی ته وقف حسن په دې وجه وائي چې دا وقف داسی معنیٰ فائده
کوي چې معنیٰ په ښه وي. یعنی مربوطه په مابعد سره نه وی.
دا ځکه دا ایت سر وی او که نه وی.
او تفصیل په دادی که چیری مابعد صحیح معنیٰ ورکوله نوورته وقف
حسن وائی لکه وقف پر، اَلرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ۃ او ابتداء د مٰلِكِ یَوۡمِ
الدِّیۡنِ ۃ څخه او د دې مثالونه په قرآن مجید کی ډیر دې.

## «وَقفِ قبیح»

دادی چې وقف پر داسی کلمه یا ایت باندی وکړه سی چې هغه د مابعد
سره لفظاً او معنیٰ تعلق ولري لکه وقف پر، بِسۡمِ اللّٰهِ، یا وقف
پر، اَلۡحَمۡدُ، یا وقف پر، مٰلِكِ، او نور د دې مشابه.
دی وقف ته قبیح لردې وجهی ویل کیږی چې معنیٰ او کلام نه په
پوره کیږی. ولې چې دلته دا نه معلومیږی چې د دې اضافت او نسبت
وچاته وسو. او قصداً پر داسی ځایونو باندی وقف ناجائزه دی.

مګر نه د ضرورت په وخت کې لکه د ساه قطع کیدل او یا د نورو لوېو وجه
او یا نور داسې ضرورتونه چې قاري وقف کولو ته مجبوره کوي.
نو په داسې وخت کې
پر قاري دا لازمه ده چې دې د بېا اعاده او ابتداء د داغه کلمې څخه
چې د ه وقف باندې کړې وکړې یا د داغه کلمې څخه لاهم مخکې یعنې
څرنګه چې د معنیٰ صحت کیږي.
او تردې وقف هم سخت **وَقفِ اَقبَح** دی.
وقف اقبح دا دی چې پر داسې ځای وقف وکړل شي چې د هغه څخه
تحریف او تبدیل د معنیٰ راشي لکه په دې راتلونکو مثالو کې.
مثلاً وقف پر دې قول د خدای جل جلاله
اِنَّ اللّٰہَ لَا یَہدِیْ ـ
اِنَّ اللّٰہَ لَا یَستَحیِی ـ
لَا یَبعَثُ اللّٰہُ
فَوَیلٌ لِّلمُصَلِّیْنَ ـ
لَاتَقرَبُوا الصَّلٰوۃَ ـ
ولې چې پر دې ځایونو باندې د وقف کولو سببه د سامع په خیال نو
داسې معنیٰ وراچول کیږي چې هغه مراد د الله تعالیٰ نه ده.
همدا رنګه وقف پر دې کلمه باندې، وَقَالَتِ الیَہُودُ ، او شروع وکړي د
دې ځایه څخه " عُزَیرُ نِ ابنُ اللّٰہِ " یا لکه وقف پر دې ځای " وَقَالَتِ
النَّصَارٰی " او شروع د دې ځایه څخه " اَلْمَسِیْحُ ابنُ اللّٰہِ. او یا لکه وقف
پر دې قول د خدای لَقَد کَفَرَ الَّذِینَ قَالُوا او شروع د دې ځایه " اِنَّ
اللّٰہَ ھُوَ الْمَسِیْحُ ابنُ مَریَمَ. او نور د دې قسمه څخه کوم چې د

مسلمانود عقیدی خلاف څه په وهم کی راګرځي.

## نو بعض عُلماء وائي.

چې کړچیرې په داسی ځایونو کی دیو قاری څخه وقف پردی مذکوره کلماتو وسو یا وصل پرداسی ځایو وسو کوم چې وقف پکار و او دی د داسی معنیٰ معتقد نه وو نو پرده ګناه نسته.

او بعض علماء وائي چې دا وقف کونکی د دروحالو څخه خالی نه دی.

١- یا به قصد دو وقف کړی وي.

٢- یا به د معنیٰ څخه ناخبره وی.

٣- یا به ضرورت ورته پیښ سوی وي.

**اول**- که ئې چیری وقف کړی وو د وجهی د ناخبریا په معنیٰ بیا پرده ګناه نسته ولی چې په دې صورت کی دی علم او فکر نه لری.

**دوهم**- او که ئې وقف د ضرورت لروجهی وکړی سره د علمه دده لکن معتقد د فاسدی معنیٰ نه وو بیا هم ګناه پرده نسته.

**دریم**، او که ئې چیری وقف قصداً وکړي او معتقد د داسی معنیٰ فاسدې وو نو هغه سړی مطلقاً کافر کیږی. او داسی عقیده سا تل که وقف وکړي که ئې نه وکړی دا غریه حکم دی.

او داسی وقف نه کوی مګر نه هغه څوک چې د دین څخه منکروی او ازلی بد بخته وی.

د لوی خدای څخه چې دی رب د عرش عظیم دی سوال کوو چې مونږ د داسی ګراهی څخه وساتی. او مونږ ته خپل د خوښی او پیده هغه شی کی چې دده رضاوی د هغه توفیق راکړی. آمین.

او بعضو علماوو ویلی دی چې که ئې وقف وکړی سره د فهمه د معنیٰ

لکن اعتقاد یې فاسد نه وي بیا هم پرده باندې ګناه ستر

## دسکتې بیان

سکته ویل کیږي جلا والي ته د کلمې د ما بعد څخه بیله ساه اخستلو او دا جلا والی به د ساه کښلو تر جلا والي کم وي.

او بعض علماء وائي چې سکته یو وقفه ده نرمه بیله ساه اخستلو. او د سکتې انداز په دوه حرکته بللې ده.

او په روایت حفص کې په ټوله قرآن کې

څلور ځایه سکتې دي.

۱ - اول. په سوره کهف کې دا قول د خدای وَلَمْ يَجْعَل لَّهُ عِوَجًا. نو قاري به په اندازه د دوو حرکتو پر جیم د عوجا سکته کوي بیله ساه کښلو او تنوین به په الف سره بدلوي. بیا به « قَيِّمًا » وائي.

۲ - دوهم. په سوره یٰس کې پر دې قول د خدای « مِن مَّرْقَدِنَا ». نو تلاوت کونکی به په اندازه د دوو حرکتو پر الف باندې سکته کوي بیله ساه کښلو. بیا وائي « هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ ».

۳ - دریم: په سوره قیامه کې « وَقِيلَ مَنْ » نو قاري به په اندازه د دوو حرکتو پر نون د مَنْ. سکته کوي بیله ساه کښلو بیا به وائي « رَاقٍ ».

٤ - څلورم. په سوره مطففین کې « كَلَّا بَلْ » نو تلاوت کونکی به پر لام باندې د بَلْ سکته کوي بیله ساه کښلو بیا به وائي « رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم »

---

یو ه سته: چې سکته پر دوه قسمه ده یوه سکته لفظي ده یوه سکته معنوي ده لته په روایت حفص کې چې کومه د سکتې ذکر دی مراد سکته معنوي یعنی د دې د پاره چې ما قبل او ما بعد په تلاوت کې فصل او جلا والی پیدا کې د جهته د مغایرت د مفهوم د ما قبل او ما بعد کوم چې سکته لفظي ده دیو ځای د امام حمزه دپاره ده
احقر فضل الحق حقانی خادم تجوید والقرات جامعه تجوید القرآن کوټه

# فصل دی په بیان د مقطوع او موصول کی

پوهـسه: چې قاري لره هېڅ چاره نسته د پیژندلو څخه د هغه کلماتو چې مقطوع (جلا) لیکلی وی، او موصول (یوځای) لیکلی وی. د دې دپاره چې د دې داو پیژنی چې دا ضطرار یا اختیار په حالت کی څرنګه وقف باندی کیږی.

د لته چې کوم اقوال د علماوو مونږ را نقل کړی دی.

شپارس دی. د هغو قسمو څخه اول قسم په لفظ کی د "اَنْ" دی ا - "اَنْ" د همزه په فتحه سره او د نون په سکون سره د "لا" نافیه څخه په لس ځایه کی جلا دی. اول او دوهم په دی قول کی د خدای ج "اَنْ لَّآ اَقُوْلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ" او د اقول د خدای ج "اَنْ لَّا یَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ"

دریم: "اَنْ لَّا مَلْجَاَ مِنَ اللّٰهِ اِلَّآ اِلَیْهِ" په سورة توبه کی.

څلرم او پنځم: "اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ" او "اَنْ لَّا تَعْبُدُوْا اِلَّا اللّٰهَ اِنِّیْٓ اَخَافُ عَلَیْکُمْ" په سورة هود کی.

شپږم: "اَلَّا تُشْرِكْ بِیْ شَیْئًا وَّطَهِّرْ" په سورة حج کی.

اووم: "اَنْ لَّا تَعْبُدُوا الشَّیْطٰنَ" په سورة یٰسٓ کی.

اتم: "اَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَى اللّٰهِ" په سورة دخان کی.

نهم: "اَنْ لَّا یُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَیْئًا" په سورة ممتحنه کی.

لسم: "اَنْ لَّا یَدْخُلَنَّهَا الْیَوْمَ" په سورة ن والقلم کی.

او کوم چې په سورة الانبیاء کی راغلی "اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ" په دی کی اختلاف د وصل او قطع سته. او دواړه وجهی جائزی دی.

اوددي ځايو څخه علاوه نور ټول ځايونه اَنْ د لَا سره موصول دی خطًا او لفظًا لکه " اَلَّا تَعْبُدُوٓا اِلَّا اللّٰهَ اِنَّنِیْ لَکُمْ" په اول کی د سورة هود او دا ایت "اَلَّا یَرْجِعُ اِلَیْهِمْ قَوْلًا" په سورة طٰه او نور ورځايونکی.

او کوم چی "اِنْ" شرطیه دی په سکون سره د نون د لام نافیه سره نو هغه ټوله موصول دی اتفاقًا لفظًا او خطًا لکه " اِلَّا تَفْعَلُوْهُ تَکُنْ فِتْنَةٌ" په سورة انفال کی. او اِلَّا تَنْصُرُوْهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ په سورة توبه کی. او نور دی مشابه.

۲- دوهم قسم:

اَنْ، سره د "لَنْ" دا اَنْ سره د لَنْ موصول دی په دوه ځایه کی لفظًا او خطًا۔ ۱- دا قول د خدای تعالیٰ - اَلَّنْ نَجْعَلَ لَکُمْ مَّوْعِدًا په سورة کهف کی ۲- اَلَّنْ نَجْمَعَ عِظَامَهٗ په سورة قیامه کی - اوددی دوه ځایه علاوه نور ټول مقطوع دي. لکه "اَنْ لَنْ یَنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ" په سورة فتح کی. اَنْ لَنْ تُحْصُوْهُ په سورة مزمل کی - او نور ددی قسمه څخه.

۳- دریم قسم اِنْ، په زیر سره د همزه د "لَمْ" سره - دا په یو ځای کی موصول دی لفظًا و خطًا " فَاِلَّمْ یَسْتَجِیْبُوْا لَکُمْ فَاعْلَمُوْا په سورة هود کی او ددی یو ځای څخه علاوه نور ټول مقطوع دي: لکه فَاِنْ لَمْ یَسْتَجِیْبُوْا لَکَ فَاعْلَمْ" په سورة قصص کی - او لکه لَئِنْ لَمْ یَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ" په سورة احزاب کی - او نور ددی قسمه څخه.

او کوم چی "اَنْ" د همزه په زور او نون ساکن سره دی سره د "لَمْ" نو هغه بلاخلافه مقطوع دی. لکه، اَنْ لَّمْ یَکُنْ رَّبُّکَ مُهْلِکَ الْقُرٰی، او "اَیَحْسَبُ اَنْ لَّمْ یَرَهٗٓ اَحَدٌ" او نور ددی په مثل

۴- **څلورم قسم**؛ لفظ ذاِنْ شرطیه دی سره د، لَمْ، اودا په یوځای کی مقطوع دی هغه دادی، وَاِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِیْ، په سورة رعد کی۔ او دی ځای څخه علاوه نور ټول موصول دی لفظًا او خطًا لکه۔ فَاِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ، او اِمَّا تَخَافَنَّ په سُورة انفال کی۔ او نور د دی مشابه۔

او کوم چی لفظ د «اَمَّا» دی د همزه په زور سره او د میم په تشدید سره دا موصول دی لفظًا او رسمًا بیله خلافه۔

۵- **پنځم قسم**؛ اِنَّ» په کسره سره د همزې او نون مشدده کله چی د «مَا» سره راسی او دا په یوه ځای کی مقطوع دی لکه اِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ، په سُورة انعام کی۔ او د دی یوه ځایه څخه علاوه نور ټول موصول دی۔ لکه «اِنَّمَا اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ» او۔ اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ، او کوم چی په سورة نحل کی دی

اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ» په دی کی د علماوو د قطع او وصل په مابین کی اختلاف دی۔

۶- **شپږم قسم**؛ اَنَّ» په زور سره د همزه او په نون مشدد سره کله چی د «مَا» سره راسی نو دا په دوه ځایه کی مقطوع یعنی جلا دی۔

۱- اول۔ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ» په سورة حج کی۔

۲- دوهم۔ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الْبَاطِلُ. په سورة لقمان کی۔

او کوم چی په سورة انفال کی دی،» وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ، په دی کی اختلاف د وصل او قطع دی۔ او وصل یه مشهور دی۔ او د دی علاوه نور ټول موصول یعنی ګډ لیکلی دي۔ لکه» فَاعْلَمُوْا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِيْنُ۔ او نور د دي قسمه څخه۔

۷۔ اووم قسم: لفظ د "اَمْ" دی د "مَنْ" سره۔ اودا اَمْ مقطوع دی د مَنْ څخه په څلورو ځایونو کی۔ ۱۔ اول۔ اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا په سورة النساء کی۔ ۲۔ دوهم۔ اَمْ مَّنْ اَسَّسَ بُنْيَانَهٗ په سورة توبه کی۔ ۳۔ دریم۔ اَمْ مَّنْ خَلَقْنَا، په سورة الصافات کی۔ ۴۔ څلرم۔ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا په سورة فصلت کی۔ اود دی علاوه نور ټول موصول دی یعنی اول میم په دوهم میم کی لفظًا او خطًا لکه۔ اَمَّنْ لَّا يَهِدِّيْٓ سورة یونس اَمَّنْ خَلَقَ اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ

۸۔ اتم قسم: لفظ د "مِنْ" جاره دی سره د "مَا" موصوله۔ او دا دری ځایه مقطوع دی۔ ۱۔ اول۔ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ په سورة النساء کی۔

۲۔ دوهم۔ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ په سورة الروم کی۔

۳۔ دریم۔ وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ، او د دی لفظ په وصل او قطع کی اختلاف دی۔ اود دی علاوه نور ټول موصول دي لکه وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ مِمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا: او نور د دی قسمه څخه۔

۹۔ نهم قسم: لفظ د "عَنْ" دی د "مَا" موصوله سره او دا په یو ځای کی مقطوع لکه: عَنْ مَّا نُهُوْا عَنْهُ په سورة الاعراف کی۔ او د دی څخه علاوه نور ټوله موصول دی لکه: عَمَّا يَعْمَلُوْنَ، عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ د

او کوم چې لفظ د "عَنْ" دی د "مَنْ" سره نو هغه بیله اختلاف مقطوع دی او دا په دوه ځایه کی ذکر سوی دی۔

اول۔ وَيَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ يَّشَآءُ په سورة نور کی۔

دوهم۔ فَاَعْرِضْ عَنْ مَّنْ تَوَلّٰى په سورة نجم کی۔

۱۰۔ لسم قسم: لفظ د "اَيْنَ"، د "مَا" موصوله سره۔ او دا موصول دی په دوه ځایه کی۔ اول۔ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ۔ په سورة بقره کی۔

دوهم۔ اَیۡنَمَا یُوَجِّهۡهُ لَا یَاۡتِ بِخَیۡرٍ ط په سورة النحل کی۔

او په کوموځایونوکی چی قطع او وصل دواړه جائزدي۔

دری ځایه دي۔ ۱۔ اول۔ اَیۡنَمَا تَکُوۡنُوۡا یُدۡرِکۡکُّمُ الۡمَوۡتُ ط په سورة نساء کی

۲۔دوهم۔ اَیۡنَمَا کُنۡتُمۡ تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ط په سورة شعراء کی۔

۳۔ دریم۔ اَیۡنَمَا ثُقِفُوۡا ۔ په سورة الاحزاب کی۔

او ددی علاوه په اتفاق سره نور مقطوع دی. لکه: اَیۡنَ مَا تَکُوۡنُوۡا یَاۡتِ بِکُمُ اللّٰهُ جَمِیۡعًا ط او اَیۡنَ مَا کُنۡتُمۡ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ط

په سورة الاعراف کی۔ اوهم نور دد بے قسمه ځه۔

۱۱۔ یوولسم قسم: لفظ د "کُلّ" دی د، مَا، سره او دا په اتفاق سره یو ځای مقطوع دی لکه" مِنۡ کُلِّ مَا سَاَلۡتُمُوۡهُ، سورة ابراهیم۔

او څلور ځایه قطع او وصل دواړه جائزدي

۱۔ اول۔ کُلَّمَا رُدُّوۡا اِلَی الۡفِتۡنَةِ ط په سورة النساء کی۔

۲۔ دوهم۔ کُلَّمَا دَخَلَتۡ اُمَّةٌ ط په سورة الاعراف کی۔

۳۔دریم۔ کُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوۡلُهَا۔ په سورة المؤمنین کی۔

۴۔څلرم۔ کُلَّمَا اُلۡقِیَ فِیۡهَا فَوۡجٌ سَاَلَهُمۡ۔ په سورة الملک کی۔

او ددی ځایونو علاوه نور ټوله موصول دی۔ لکه۔ کُلَّمَا رُزِقُوۡا مِنۡهَا ط او۔ اَفَکُلَّمَا جَآءَکُمۡ رَسُوۡلٌ ۔ په سورة بقره کی۔ اونور ددی قسمه ځه۔

۱۲۔ دوولسم: لفظ د، بِئۡسَ، دی د "مَا" سره او دا په دوه ځایه کی موصول دی۔ ۱۔ بِئۡسَمَا اشۡتَرَوۡا بِهٖۤ اَنۡفُسَهُمۡ، سورة البقره۔

۲۔ بِئۡسَمَا خَلَفۡتُمُوۡنِیۡ مِنۡ بَعۡدِیۡ۔ سورة الاعراف۔

او په یوه ځای کی قطع او وصل دواړه جائزدي۔

لکه: قُلۡ بِئۡسَ مَا یَاۡمُرُکُمۡ بِهٖۤ اِیۡمَانُکُمۡ ط په سورة بقره کی۔

اودی علاوه نور مقطوع دی لکه: وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ط
او، فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ط په سورة آل عمران کی. اوهم نور ددی قسمه ځنې.

اوکوم چی لفظ د "حَيْثُ" سره د، مَا، نوهغه بیله خلافه مقطوع
دی لکه: وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ، دوه ځایه په سورة بقره کی.

۱۳- دیارلسم قسم: لفظ د، کَیْ، دی د "لا" نافیه سره - اودا په څلورو
ځایونوکی موصول دی. ۱- لِكَيْلَا تَحْزَنُوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ د په سورة آل عمران کی.
۲- لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْـًٔا - په سورة حج کی. ۳- لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ حَرَجٌ
په سورة احزاب کی. ۴- لِكَيْلَا تَاْسَوْا. په سورة الحدید کی.

اودی ځایونو علاوه نور مقطوع دی لکه: لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْـًٔا
په سورة النحل کی، لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ په سورة احزاب کی، او نور ددی قسم ځنې

۱۴- څوارلسم قسم: لفظ د "فِي"، دی د "مَا"، سره - اودا په یوولس
ځایه کی مقطوع دی: ۱- اول. فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ په سورة بقره کی.
۲-۳- دوهم او دریم. لِيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ په سورة مائده او انعام کی.
۴- څلورم. قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْ مَآ اُوْحِيَ اِلَيَّ په سورة انعام کی. ۵- پنځم. فِيْ مَا
اشْتَهَتْ اَنْفُسُهُمْ د په سورة الانبیاء کی. ۶- شپږم. لَمَسَّكُمْ فِيْ مَآ اَفَضْتُمْ
په سورة نور کی. ۷- اووم. اَتُتْرَكُوْنَ فِيْ مَا هٰهُنَآ اٰمِنِيْنَ. په سورة شعراء کی.
۸- اتم، شُرَكَآءَ فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ ط په سورة الروم کی. ۹-۱۰- نهم
اولسم. فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ط فِيْ مَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ.
په سورة زمر کی. ۱۱- یوولسم. وَنُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ، په سورة الواقعه کی

اودی ځنې علاوه نور ټول موصول دی.
لکه فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ط فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ ط
اونور ددی مشابه موصول د ے

۱۵- **پنځلسم قسم:** لام جاره دی د خپل ما بعد سره - لام جاره په څلور ځایه کی د خپل مجروره څخه جلا دی.

۱- فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ په سورة النساء کی　۲- مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ په سورة کهف کی

۳- مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ په سورة فرقان کی.　۴- فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا په سورة المعارج کی

اودی ځایونو څخه علاوه لام جاره د خپل مجروره

سره موصول وی لکه. وَمَا لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ مِنْ نِّعْمَةٍ - په سورة واللیل کی.

مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ او نور د دے قسمه څخه.

۱۶- **شپاړسم قسم:** لفظ د "يَوْمَ" د "هُمْ" سره اودا په دوه ځایه کی مقطوع دی. ۱- اول- يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ په سورة ۲- دوهم. يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُوْنَ د په سورة الذاريات کی.

اودی علاوه نور موصول دی.

لکه. يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ په سورة الزخرف کی.　يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ په طور کی. او نور د دی قسمه څخه. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ.

# فصل دئ په تاآتو د تی کانو کی

**پوهه سه:** چی تاءِ مجروره هغه ده چی په وصل او وقف دواړو کی تاء ویل کیږی. اودې ته تاء تانیث هم ویل کیږی.

او کومه چی تاء (مربوطه) یا (مدوره) هغه کردی تاء ده دا په وصل کی تاء او په وقف کی په هاء سره بدلیږی اودې ته هاء تانیث وائی نو په قرآن مجید کی لس داسی کلماتی ستهٔ چی کله په تاء مجروره (اوږده) تاء لیکل کیږی. او کله کله په تاءِ مربوطه (کردی) تاء

سره لیکل کیږي۔ هغه الفاظ دا دي:

۱ رَحْمَةٌ ۲ نِعْمَةٌ ۳ اِمْرَأَةٌ ۴ سُنَّةٌ ۵ لَعْنَةٌ ۶ كَلِمَةٌ ۷ قُرَّةٌ ۸ بَقِيَّةٌ ۹ شَجَرَةٌ ۱۰ جَنَّةٌ۔

اوس مونږ د تاء مجروري ذکر کوو ددې دپاره چې قاري پوه سي چې ددې الفاظو علاوه چې کوم الفاظ دي هغه په تاء مربوطه سره دي چې وقف یه باالهاء او وصل یه په تاء سره دئ۔

کوم چې لفظ د رَحْمَة دي داپه اوؤه ځایه کې په اوږده تاء سره لیکلی دي:

۱۔ اُولٰٓئِكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ په سورة بقره کې۔ ۲۔ اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ په سورة الاعراف کې۔ ۳۔ رَحْمَتُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ په سورة هود کې۔ ۴۔ ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ په سورة مريم کې ۵۔ فَانْظُرْ اِلٰٓى اٰثَارِ رَحْمَتِ اللّٰهِ په سورة روم کې۔ ۶۔ او۔ ۷۔ اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ رَحْمَتَ رَبِّكَ، وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ۔ دواړه په سورة زخرف کې۔

او ددې نه علاوه په تاء مربوطه (گردي) لیکلی دي۔

چې وصل یه په تاء سره او وقف یه په هاء سره دئ۔ لکه په دې قول د خدای ج کې: لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ او بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ۔ او نور دد ې مشابه۔

او کوم چې لفظ د "نِعْمَت" دي په یوولس ځایه کې په اوږده تاء سره لیکلی دي:

۱۔ وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ اَنْزَلَ ط په سورة بقره کې۔

۲۔ وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ كُنْتُمْ۔ په سورة آل عمران کې۔

۳۔ وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ هَمَّ قَوْمٌ۔ په سورة المائده کې۔

۴-۵۔ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ۔

او- وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا. دواړه په سورة ابراهیم کی.

۶-۷-۸- وَ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ - يَعْرِفُوْنَ نِعْمَتَ اللّٰهِ وَاشْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ . دری سره په سورة النحل کی.

۹- اَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِیْ فِی الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ په سورة لقمان کی.

۱۰- اُذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ هَلْ مِنْ خَالِقٍ په سورة فاطر کی

۱۱- فَذَكِّرْ فَمَا اَنْتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ. په سورة الطور کی.

ددی ځایونو علاوه په گردی تاء.

سره لیکلی دی چې په وقف کی په هاء سره بدلیږی لکه وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ په سورة مائده کی. وَاِذْ قَالَ مُوْسٰی لِقَوْمِهِ اُذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ په سورة ابراهیم کی. وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا په سورة نحل کی: او دارنگه نور د ... مشابه.

اوکوم چې لفظ د "اِمْرَاَة" دی کله چې وخپل زوج ته مضاف سی نوهلته په تاء مجروره (اوږده) سره لیکل کیږی. اوداسی ځایونه اووه دی

۱- اِذْ قَالَتِ امْرَاَتُ عِمْرَانَ په سورة آل عمران کی.

۲-۳- فِی الْمَدِیْنَةِ امْرَاَتُ الْعَزِیْزِ قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِیْزِ دواړه په سورة یوسف کی.

۴- وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ - په سورة القصص کی.

۵-۶-۷- كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ. اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ دری سره په سورة التحریم کی.

اوددی ځایونو علاوه نور ټوله په تاء مربوطه سره لیکلی دی چې وقف یې په هاء سره دی. لکه اِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ په نساء کی. وَجَدْتُّ امْرَاَةً تَمْلِكُهُمْ او نور ددی قسمه نور

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَطَابِعِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ تَرْجَمَهٗ وَكَتَبَهٗ اَحْقَرُ فَضْلُ الْحَقِّ حَقَّانِی غَفَرَلَهٗ

او لفظ د "سُنَّةَ" چې دی په پنځه ځایه کې په اوږده تاء سره لیکل سوی دی لکه:

۱- فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِيْنَ په سورۃ الانفال کې-

۲-۳-۴- فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا سُنَّتَ الْاَوَّلِيْنَ- وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَحْوِيْلًا- فَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا په سورۃ فاطر کې-

۵- سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهٖ په سورۃ غافر کې-

او ددی علاوه نور ټول په تاء مربوطه (اوږده) سره لیکل کیږی او د وقف په حالت کې په هاء سره بدلیږی. لکه: سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا په سورۃ اسراء کې- سُنَّةَ اللّٰهِ الَّذِيْنَ خَلَوْا په سورۃ الاحزاب کې-

او لفظ د "لَعْنَةَ" په تاءِ مجروره سره دوه ځایه لیکلی دی-

۱- فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ په سورۃ آل عمران کې-

۲- وَالْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ په سورۃ النور کې- او ددې علاوه نور په تاء مربوطه "گردی" سره لیکل کیږی. لکه: اُولٰٓئِكَ اَنَّ لَعْنَةَ اللّٰهِ په سورۃ بقره کې. او- اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ اَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ په سورۃ آل عمران کې-

او ددی نور مثالونه:

او لفظ د "كَلِمَةَ" پنځه ځایه په تاء مجروره سره لیکلی دی:

۱- وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى په سورۃ الاعراف کې.

۲- وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا په سورۃ الانعام کې:

۳-۴- كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ - او اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ دواړه په سورۃ یونس کې-

۵۔ وَكَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا۔ په سورة غافر کی۔

او دی څخه ماسوا نور په تاء مربوطه (ګردی) سره لیکلی دی چې وقف یه په هاء سره دی لکه: وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ په سورة هود کی۔ او ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً په سورة ابراهيم کی۔

او لفظ د "بَقِيَّة" یو ځای په اوږده تاء سره لیکلی دی لکه: بَقِيَّتُ اللّٰهِ خَيْرٌ لَّكُمْ په سورة هود کی د دی څخه ماسوا نور په ګول تاء سره لیکلی دی لکه: أُولُوا بَقِيَّةٍ په سورت هود کی۔ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ په سورة بقره کی۔ او نور د دی مشابه۔

او لفظ د "قُرَّة" چې دی یو ځای په اوږده تاء سره لیکلی دی لکه: قُرَّتُ عَيْنٍ لِّي وَلَكَ په سورت القصص کی۔

او د دی څخه ماسوا نور په ګردی تاء سره لیکلی دی چې وقف یه په هاء سره دی۔ لکه فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ په سورة السجده کی، رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ په سورة الفرقان کی۔

او لفظ د "شَجَرَة" چې دی په یو ځای کی۔

په اوږده تاء سره لیکلی دی لکه: إِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّومِ په سورة الدخان کی۔ او د دی څخه ماسوا نور ټول په تاء مربوطه سره لیکلی دی لکه: هَلْ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ الْخُلْدِ په سورة "طه" کی۔ وَشَجَرَةً تَخْرُجُ په سورة المؤمنون کی: او نور د دی مشابه۔

او کوم چې لفظ د "جَنَّة" دی دا یو ځای په اوږده تاء سره لیکلی دی نور ټول په ګول تاء سره دی لکه: وَجَنَّتُ نَعِيمٍ په سورة الواقعة کی۔

او د دی په ګردی تاء سره لکه: وَسَارِعُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ په سورة آل عمران کی، ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ په سورة الاعراف کی،

ساتل کیږی د زیادت او د نقصان څخه۔ او زده کړه د علم تجوید فرض کفایه ده او عمل په علم تجوید فرض عین دی پر هر نر او هره ښځه باندی ۔ او ددی خبرو ذکر په اول کی د کتاب هم او سو

<u>او دا معلومه خبره ده۔</u>

چی قرآن کریم اشرف الکلام او اعظم عبادت دی تلاوت کول به او قرآن مجید یقینی شفاعت کوونکی دی، او ښه تره غنی کوونکی دی او به دا غه قرآن مجید سره د دواړو جهانو کامیابی په کښی ده

او ډیر آیتونه او حدیثونه په فضیلت د قرآن او اهل قرآن او ښوونکو د قرآن کی راغلی دی ؛

چی یو د هغو څخه دا قول د خدای تعالیٰ دی ۔ إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَارَةً لَّن تَبُورَ لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ إِنَّهُ غَفُورٌ شَكُورٌ ترجمه: په تحقیق سره هغه کسان چی تلاوت د کتاب الله کوی او لمونځونه برپایه کوی ۔ او خرڅوی مصرف کوی د هغه رزق څخه چی موږ ورکړی وی دا خرڅ په پټه او هم په ښکاره کوی۔ دوی امید د داسی تجارت لری چی هغه نه زائلیږی ۔ د دی د پاره چی الله تعالیٰ ور دوی ته مزدوری او زیادت په مزدوری کی ورکړی۔ په تحقیق او بیله شکه الله تعالیٰ بخښونکی او شکر ویل کړل سوی دی ؛

او بل دا قول د خدای تعالیٰ ؛ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۔ ترجمه: هر کله چی قرآن مجید ویل کیږی نو تاسی غوږ ورته و نیسی او پټه خوله سی د دی د پاره چی پر تاسی رحم وکړل سی.

او هم آیاتونه چی دلالت کوی پر فضیلت د قرآن او د اهل قرآن ؛

او کوم چې حدیثونه پر فضیلت د قرآن راغلي دي یو څو دادي.

نبي علیه السلام وائي: اِقْرَؤُا الْقُرْاٰنَ فَاِنَّهٗ یَأْتِیْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ شَفِیْعًا لِاَصْحَابِهٖ" رواه مسلم في صحيحه. ترجمه: تاسو قرآن وایاست ولې چې دا قرآن به ورځ د قیامت خپل لوستونکي لره شفاعت کوي. د دې حدیث روایت صحیح مسلم کړی دی.

د ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چې نبي علیه السلام وائي یَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰی: مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْاٰنُ عَنْ دُعَائِيْ وَمَسْاَلَتِيْ اَعْطَیْتُهٗ اَفْضَلَ مَا اُعْطِیَ السَّائِلِیْنَ. وَفَضْلُ كَلَامِ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلٰی سَائِرِ الْكَلَامِ كَفَضْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلٰی خَلْقِهٖ رواه الترمذي

ترجمه: الله پاک وائي چې کوم څوک مشغوله کي د قرآن مجید ویلو په سبب زما د بللو څخه او زما څخه د خواست کولو څخه نو زه به ده ته ورکړم هغه بهتر کوم چې سوال کوونکو ته ورکول کیږي. او د خدای د کلام فضیلت پر دا نورو کلامو لکه فضل د خدای تعالی پر مخلوق خپل. د دې روایت ترمذي کړی دی.

د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی وائي نبي علیه السلام وویل اِنَّ الَّذِیْ لَیْسَ فِیْ جَوْفِهٖ شَیْءٌ مِّنَ الْقُرْاٰنِ كَالْبَیْتِ الْخَرَابِ. رواه الترمذي

بېشکه هغه څوک چې په سینه کي د قرآن یو حصه نه وي مثال ئې د اسې دی لکه خراب کور ایږه.

او د دا غه ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې دی وائي نبي علیه السلام وویل یُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْاٰنِ اِقْرَأْ وَارْقِ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِی الدُّنْیَا فَاِنَّ مَنْزِلَتَكَ عِنْدَ اٰخِرِ اٰیَةٍ تَقْرَؤُهَا رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي

ترجمه: وبه ویل سي صاحب ته د قرآن په ورځ د قیامت چې قرائت وایه او پورې کوه او د تجوید د قواعدو برابر ئې وایه لکه تا چې به په دنیا کښې وایه بیله شکه ستا هغه ځای دلوسیدو دی د جنت په هغه عالي مقام کي پر کوم ځای چې ستا اخري ایت وي.

د دې حدیث روایت ابوداؤد، ترمذي او نسائي کړی دی.

اوداغه ابن عباس رض څخه روایت دی چې نبي علیه السلام وائي
خَیْرُکُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهٗ: رواه البخاري ومسلم
ترجمه: بهترین او غوره ستاسو هغه دی چې قرآن مجید ځنې زده کړي او نورو ته يې ور زده کړي = او بیا بل روایت کې داسې راغلي دي.
اَلَّذِیْ یَقْرَءُ الْقُرْآنَ وَهُوَ مَاهِرٌ بِهٖ مَعَ السَّفَرَةِ الْکِرَامِ الْبَرَرَةِ ٭ وَالَّذِیْ یَقْرَءُهُ الْقُرْآنَ وَیَتَتَعْتَعُ فِیْهِ وَهُوَ عَلَیْهِ شَاقٌّ لَهٗ اَجْرَانِ.
ترجمه کوم څوک تلاوت دقرآن مجید کوی او دی په کښې ماهر وی دی به په ورځ د قیامت د نیکو کارو صالحینو سره ملګری وی: او هغه څوک چې دقرآن تلاوت کوی او دا تلاوت پرده باندی سخت وی دژبې دبندیدو له سببه د هغه د پاره دوه اجره دی یو اجر د تلاوت او بل د محنت او د تکلیف دده =

او ددې علاوه نور هم ډېر حدیثونه په فضیلت دقرآن او اهل قرآن کې راغلي کوم چې د عقل او بصیرت پر خاوندانو باندی پوشیده او پټ نه دي.

اود اخبر دهغه دی

چې الله تعالی ما ته دهغه یو ځای کېدل آسانه کړه، دالله تعالی په مهربانۍ سره چې بخښونکی دی. او د خدای څخه امید د قبلید و او د ثواب لرو!.
وَصَلَّی اللّٰهُ عَلٰی سَیِّدِ الْاَنَامِ، سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ عَلَیْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ وَعَلٰی اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ السَّادَةِ الْکِرَامِ. وَاللّٰهُ عَلٰی مَا یَشَاءُ قَدِیْرٌ وَبِالْاِجَابَةِ جَدِیْرٌ،

---

کَتَبَهٗ وَتَرْجَمَهٗ بِاللُّغَةِ الْاَفْغَانِیَّةِ اَحْقَرُ فَضْلُ الْحَقِّ عُثْمَانِیْ بِقَلَمِهٖ خَادِمُ التَّجْوِیْدِ وَالْقِرَاٰتِ جَامِعَة تَجْوِیْدُ الْقُرْآن سِرکی روډ کوئټه پاکستان

# «د پښتو قول سدید د مضمونونو فهرست»

دَ علم تجوید او قراءت د مشهورو او معتبرو کتابونو لوئیه اداره

# دَ مکتبة القراءت نوی مطبوعات

| | |
|---|---|
| جمال القرآن | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| فوائد مکیه | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| مقدمة الجزریه | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| القول السدید | پښتو مع الحواشی جدیده |
| هدایة المستفید | پښتو مع الحواشی و تشریحات جدیده |
| مفتاح التجوید | پښتو، و فارسی مع تشریحات جدیده |
| خلاصة التجوید | پښتو مع تشریحات جدیده |
| تسهیل التجوید | پښتو مع تشریحات جدیده |
| تیسیر التجوید | پښتو (زیر طبع) مع تشریحات جدیده |
| تجوید محمدی | پښتو مع تشریحات جدیده |
| معارف التجوید | پښتو مع رسم قرآن مجید |
| مقدمة التجوید | پښتو (زیر طبع) مع تشریحات جدیده |
| امانیته شاطبیه | پښتو دوه جلده مکمله شرح (زیر طبع) |
| تنشیط الطبع فی اجراء السبع | پښتو سره د (حق النفع) جدیده |

## زمونږ بنکلی اُوسنی مطبُوعات

○ آسانه فقه پښتو
○ فوائد مکیّه پښتو
○ اِرشادُالصرف فارسی
○ تعلیمُ العقائِد پښتو
○ تعلیمُ الاسلام پښتو
○ نماز پښتو خورد وکلاں
○ اِیسا غوُجی عربی نوی کتابت
○ مِیر ایساغوجی عربی نوی کتابت

○ مُطوّل نوی کتابت
○ نورُالایضاح ۳ جلده
○ قدُوری صلوٰة
○ قدُوری نکاح
○ شرُوطُ الصَّلوٰة
○ تیسیرُ التجوِید
○ تجویدُونه

په هره ژبه سره
دتجویدونومرکز

